**کتاب پېژندنه:**

# انسان څوک دی؟

| | | |
|---|---|---|
| لیکوال | :: | سیداصغر هاشمي |
| اړیکشمېرې شمېرې | :: | ۰۷۸۰۰۰٦۱٦٦/۰۷۷۷٦۱۸۰۱۷ |
| ایمیل | :: | saidasghar.hashimi1@gmail.com |
| خپرندوی | :: | هاشمي خپرندویه ټولنه |
| دیزاین | :: | پخپله لیکوال |
| کمپوز | :: | پخپله لیکوال |
| چاپ وار | :: | لومړی |
| چاپ شمېر | :: | ۱۱۰۰ ( یو زر او سل) |
| چاپ کال | :: | ۱۳۹٦لمریز کال |



**د ترلاسه کولو پته:**

ننګرهار/ هاشمي کتاب پلورنځی، بزازي څلور لارې، اسحاقزی مارکېټ، جلال آباد ښار. اړیکشمېرې: ۰۷۸۰۰۰٦۱٦٦ - ۰۷۷۷٦۱۸۰۱۷

ننګرهار :میهن کتاب پلورنځی/ ګردېز: علمي کتاب پلورنځی/ کندهار: عرفان کتاب پلورنځی/ خوست: ملي کتاب پلورنځی/ کابل: اکسوس کتاب پلورنځی، مستقبل کتاب پلورنځی/ کونړ: کامران کتاب پلورنځی/ مزار: ثقافت کتاب پلورنځی/ هلمند: قریشي کتاب پلورنځی/ پېښور: یونورستي بوک ایجنسي.

# مننه او کور ودانی

د ننگرهار ولایت ښار جوړوني رس اینجینر عبدالقهار حیدري او احمد اسماعیل حیدري له مرستو مننه کوم.

# ډالۍ

د انساني فکر څښتن،

د انسان په درد دردمن،

او

د رښتيني انساني احساساتو درلودونکي،

***پوهنیار رفیق الله بریالي*** ته!

سیداصغر هاشمي

# انسان څوک دی؟

د نړۍ انسانان په بېلا بېلو جغرافيو کې ژوند کوي، د ټولنو ټولنيز ارزښتونه یو شان نه دي او د بېلا بېلو والدينو پيدا او ارثي خانګړنې يې توپير لري. د ملتونو سياسي حالتونه په يو شکل نه دي، اقتصادي ژوند په انسان اغېز لري او نړۍ يو شان اقتصاد نه لري، څوک غريب او څوک مالدار دي، په ځينو ملکونو کې يوه مړۍ ډوډۍ نه پيدا کېږي او په ځينو خايونو کې د سرو زرو په لوښو کې ډوډۍ خوړل کېږي.

د ټولنو فرهنګونه يو شان نه دي، د علم او پوهې درجه يې برابره نه ده، د انسانانو دنننې رغښتونه(جوړښتونه) توپير لري، نو ځکه نه شو کولای چې د انسانانو له داخلي تاثراتو خبر شو. انسانان هغه معلولې هستۍ دي، چې د پورته لاملونو پر بنسټ بېلا بېلې خواوې خپلوي او انسان پېژندنه ستونزمنوي، نو ځکه زه هم نه پوهېږم چې انسان څوک دی! زه په يوې ټولنې کې ژوند کوم او ځينې انساني مثبتو او منفي مسايلو ته متوجه شوی يم او د انساني حقوقو پر اساس دا حق لرم چې خپل نظر او فکر ولرم او د خپل زړه خبرې د زړه په خوښه وکړم، نو ځکه په دغه اثر(انسان څوک دی؟) ځينې انساني ستونزو ته نغوته(اشاره) شوې ده او په ځينو مواردو کې د حل په لارو چارو غږېدلی يم. ټولنيز او فرهنګي اختلافات دي چې د انسانيت لپاره معيارونه يو شان نه دي، په ځينو ټولنو کې نجلۍ ته سلام نه اچول غير انساني عمل دی، خو په ځينو ټولنو کې همدا عمل ستايل کېږي. پرمختللو هېوادونو کې د لوړ موقف لپاره معيار پوهه او علم دی، خو ځينو وروسته پاتې هېوادونو کې

مشري په نورو لاملونو ورکول کېږي. دوی ټول انسانان دي، څوک یو عمل ته ښه وايي او څوک بل ته. ځینې شیان جامع، مانع، کوټلې، منلې او ټولمنلې پېژندنه نه لري، نو په داسې مسایلو بحث د یوه فکر او زاویې وي او دا چې فکرونه یو شان نه دي، انساني داخلي جوړښتونه توپیر لري، ټولنې توپیر لري او هر انسان د بېلا بېلو ارثي خصوصیاتو درلودونکی وي، نو په داسې مسایلو بحث بیا هم زما د پورته خبرو په تائید اسانه ـ نه دي. د یو عالم نه چا پوښتنه وکړه: ادب څه مانا؟ په خواب کې یې وویل: که ووایم چې پوهېږم نو پوهېږم، خو که ووایم چې نه پوهېږم نو نه پوهېږم. ده ځکه دا ځواب ورکړ، چې ادب لکه انسان د بېلا بېلو لاملونو پر بنسټ بېلا بېلې خواوې خپلوی شي. د روسي ژبې پیاوړی لیکوال لیف تولستوی د هنر پېژندنې په اړه لسګونه کاله هڅې او څېړنې وکړې، خو بیا هم داسې پایلې ته ونه رسېد چې د ټولو له خوا یو شان منل شوې وي. د شعر پېژندنې په اړه هم ټوله نړۍ په یوه خوله نه ده، ځکه چې شعر د انسانانو په واسطه را منځ ته کېږي، انسانان یو شان داخلي تاثرات نه لري، په یوه ځانګړې ټولنه کې ژوند نه کوي، د انساني ژوند دورانونه یو شان نه دي او داسې نور په لسګونو لاملونه دي، چې شعر په اړه ډول ډول نظرونه دي. استیتیک پېژندنه(ښکلا پېژندنه) په ورځیني ژوند او ادبیاتو کې د ټولو انسانانو لپاره یوه شان نه ده، څوک یو ډول ښکلا خوښوي او څوک بل ډول، د چا شنې سترګې خوښېږي او د چا تورې. په افریقا کې د انسانانو لپاره ډېر تور رنګ د ښکلا د لوړو معیارونو څخه دی، خو په افغانستان کې سپین رنګ.

د پورته مقدماتي خبرو په پایله کې ښکلا د انسان په واسطه غوره کېږي، شعر د انسان په واسطه ویل کېږي، هنر د انسان په واسطه انسان ته پنځول کېږي، ادب انسان خلقوي، خو بیا هم یوې پایلې ته نه رسېږي، یوازینی دلیل یې انسانان هغه معلولات دي، چې د مختلفو علتونو پر

اساس کله يو شان او کله بل شان، کله ظالم او کله مظلوم، داخلي تاثرات يې بېلا بېل، د ښکلا خوښونې ذوق يې متفاوت او داسې نور انساني توپيرونه دي، نو څکه يوې ټولمنلې پايلې ته رسېدلی نه شو، چې انسان څوک دی؟ زه هم نيمګړتياوې لرم، نو څنګه به وکولای شم چې د نورو نيمګړتياوې په ګوته کړم، سرګردانه او لالهانده يم چې ځان وپېژنم او اصلاح له خانه پيل کړم، چې تر اوسه توانيدلی نه يم، نو د نورو پېژندل او اصلاح خو لا ستونزمنه ده، خو بيا هم هڅه کوم چې ځان او ټولنې ته کار وکړم. په پای کې پوهنيار عبدالعظيم صديقمل او نعمت الله صديقي له مرستو مننه کوم او د خپلو نيمګړتياوو اصلاح د الله تعالی له درباره غواړم او ټولو انسانانو ته د ښو انساني اعمالو غوښتونکی يم.

مننه

سيداصغر هاشمي

ننګرهار، ۱۳۹٦/۹/۱

# لیکلړ

# انسان او بې عدالتي

انسانان یو کرنګ او همرنګ پیدا شوي دي. د دوی د بدن دننني او بهرني جوړښت کې له عدالته کار اخیستل شوی. که د انسان لاسونه د قد له اندازې اوږده شي، یا یې سترګې له حده غټې شي او یا یې د بیروني غړو شمېر زیات و کم شي، سترګې د دوو پرځای درې یا یوه شي، نو لویه ستونزه جوړوي. همدارنګه د بدن په داخلي جوړښت کې که وینه زیاته شي یو ډول ستونزه ده او که کمه شي بله ستونزه پیدا کېږي، نو ځکه الله تعالی فرمایلي دي:«في احسن انقويم». همدارنګه کاینات هم برابر پیدا شوي دي، که سپوږمی او لمر یو بل ته لږ نږدې او لرې شي، نظام به ګډ وډ شي، خو ډېر انسانان خپل داخلي او بیروني رغښت ته نه ګوري، د ځان پېژندنې«خودي» له مفهومه ناخبره دي، نو ځکه بې عدالتي کوي. بې عدالتي په سلګونو ډولونه لري، چې پېژندل یې بینا سترګې او پوهه غواړي. که چېرې حق حقدار ته ورنه کړل شي، د یوې ادارې مشر ناپوهه او لاس لاندې کار کوونکیو کې یې پوهان وي، له دې بله لویه بې عدالتي نشته. د اسلام په پیل کې هر چاته دنده د هغه د ذکاوت په نظر کې نیولو سره ورکول کېده، که د جنګ په میدان کې حضرت عمر او حضرت خالد رضي الله تعالی عنه مخکې کېدل، نو د اذان دنده حضرت بلال رضي لله تعالی عنه ته ورکول کېده، د انساني توپیرونو په نظر کې نیولو سره حضرت عمر د حضرت بلال رضي الله تعالی عنه او حضرت بلال د حضرت عمر رضي الله تعالی عنه دنده سمه پر مخ وړلای نه شوه، نو ځکه د هر چا دنده معلومه وه او دا په هغه وخت کې د عدالت یوه بېلګه ده. کله چې ابوبکر صدیق رضي الله تعالی عنه خلیفه ټاکل کېده، نو ده ترې انکار کاوه، دی پوهېده چې عدالت کول اسانه نه ده، خو نن ډېر انسانان په بېلا بېلو لاملونو ځان موقف ته رسوي، چې د خودي په مفهوم پوه نه شو، بنه انسان کېدل به مو د سوال لاندې وي او دایم به داسې کړنې سرته رسوو چې ټولنې ته به زیان رسوي. ټولې نړۍ کې د هر شي لپاره معیار ټاکل شوی دی، هته لوړې دندې په یو معیار ورکول کېږي، خو په

ځینو ځایونو کې قومي، نژادي او سمتي مسایل په نظر کې نیول کېږي، چې د بې عدالتۍ بنسټ له همدې ځایه پیلېږي.په ټولیز ډول چېرته چې بې عدالتي وي، هلته پوهان او عالمان خفه او ناپوهان خوشحال وي، ځکه چې د پوهانو حق ناپوهانو ته ورکول کېږي، ناحق حق ثابتېږي او حق ناحق.

ای انسانه! عدالت او انصاف د لمر، سپوږمۍ، باران او باده زده کړه. سره له دې چې دا توکي عقل او فکر نه لري، خو بیا هم د ځینو بې فکره انسانانو په انصاف او عدالت ښه دی. لمر سهار پیدا کېږي، په غریب، مالداره، خپل و پردي یو شان رڼایي کوي. دغه با انصافه لمر له عدالته کار اخلي، چې ډېر انسانان دغه شان برابري نه کوي. د شپې له خوا د سپوږمۍ په راختلو یو ځل بیا په ټولو رڼایي شي او که اسمان وریځ وي او سپوږمۍ خپل مخ پټ کړي، نو بیا هېڅوک د ده له مخه پلو نه شي لرې کولای. بارانونه هم لکه لمر و سپوږمۍ له انصافه کار اخلي او اکثره ځمکې یو شان خړوبوي، خپل او پردی، دوست او دښمن په نظر کې نه نیسي. دغه بې فکره، بې عقله او بې تمیزه توکي څو مرتبې د هغو انسانانو چې عقل و فکر لري، خو عدالت و انصاف نه کوي بهتر دي.

ای په لوړو مقامونو کې ډېرو انسانانو! ستاسې د انصاف تله ماته ده. عدالت او برابري له لمر، سپوږمۍ، باران او له باده زده کړئ.

رښتیا چې انسانان باید کله کله له کایناتو زده کړه وکړي. خپل ځان ته ښه ژوند غواړو او نورو ته یې نه غواړو، خپله خوشحالي غواړو او د بل خفګان ته خوشحالېږو، د بل په درد کې خپل بې دردي لټوو، چې دا عدالت نه دی او دا بې عدالتي د انسانانو په واسطه تر سره کېږي. که انسان، انسان نه شي نو دا بې عدالتي به روانه وي.

*که انسان د انسانیت پر ګانه سمبال او ښه انسان وي، نو هېڅکله به د ژوند په چارو کې بې عدالتي ونه کړي، بې عدالتي په سلګونو دولونه لري، چې را منځته کوونکی یې انسان دی.*

## انسان او تضاد

انسان د ضدینو مجموعه ده او د انسان د ژوند ټول واک د الله تعالی سره دی، که د ده خوښه وي او که نه وي، دې متقابلو شیانو سره به وخت تېروي.

که په نړۍ کې لومړنی انسان ادم علیه السلام نه وای، نو بي بي حوا به نه وه، ځکه چې حوا بي بي د ادم علیه السلام له پښتیو پیدا شوه، که بي بي هوا نه وای، نو نن به د نړۍ انسانان نه وو.

که زما والدین «مور و پلار» نه وای، نو نن به زه نه وای، خو که زه او زما د ژوند ملګرې نه وای، نو زموږ کورنی «ماشومان» به نه وه.

که په یوې ټولنې کې نرینه انسانان د ملا د تیر حیثت لري، نو همدا تیر د مور په رحم کې جوړېږي، همدا مور دا تیر په پښو ودروي او تربیه یې کوي، نو پر همدې اساس په قران کریم او نبوي احادیثو کې د ښځو د حقوقو په تړاو زښتې ډېرې خبرې راغلي دي. نن که نرینه په ښځو ظلم کوي او دوی ته خپل حق نه ورکوي، پوه دې شي، چې د یوې ټولنې ښځینه قشر د ښوونې او رزونې پر ګاڼه سمبال نه شي، نا شونې ده، چې په ټولنه کې د ښوونې او روزنې کچه لوړه شي او په ټولنې کې ښه انسانان ډېر شي.

په کورنۍ کې اولادونه له ښځو پیدا کېږي. د نطفې ټاکلو ورځې«د پلاسنټا» له لارې د مور په خوړلو تغذیه کېږي او زیات و کم نهه میاشتې د مور په رحم کې وي. د مور ډېر کره وړه اولاد ته په ارث کې پاتې کېږي، نو یوه هوښیاره مور د یوې ښې کورنۍ نماینده ګي کولای شي.

چنگیز او هلاکو د میندو نه پیدا شوي وو او همدارنگه ابو علي سینا بلخي او مولانا جلال الدین محمد بلخي هم له میندو پیدا شوي. په تولیز ډول د دوی په شخصیت جوړونه کې مور و پلار او په ځانگړي ډول مور اساسي نقش درلود، نو د نړی انسانان دې پر دې پوه شي، چې ټول ضدین د انسانانو د گټې لپاره دي او په دې کې لوی حکمتونه پراته دي.

کله چې انسان د ځان پېژندنې په مفهوم پوه شي، نو بیا پوهېږي چې دی د اضدادو سره وخت تېروي او دغه ضدین د ده په خیر دي. کله چې انسان په دې پوه شي چې ضدین د ده په گټه دي نو دغه د خودي(ځان پېژندنې) لویوالی دی.

د ژوند او مرگ د فلسفې په بیان کې انجام و اغاز، هست و نست او بودي و نابودي ضدین دي.

د ژوند سره مرگ تړلی دی. د ژوند سره، رڼا او تیاره، گل او اغزي شته. د انسان مرگ د انسان د زېږېدلو د لومړۍ ورځې د هغه سره یو ځای پیدا کیږي او هرساکښ به یوه ورځ له مینځه ځي او مړ کېږي به. که یو انسان هر څومره قوي، عالم، فاضل او مالدار وي، بیا هم مړ کېږي. مرگ په حقیقت کې د انسان ژوند دی، انسان باید خپل مرگ ته خفه نه شي، ځکه د انسان ژوند وروسته له مرگه پیلېږي.که انسان دیندار وي او د الله تعالی په لورینې او پیرزوینې د جنت دروازې یې پر مخ خلاصې شي، نو ژوند بیا هلته ژوند دی، نه دې دنیا کې.کله چې خزان د پسرلي گلونه ورژوي، پسرلی ورته وایي: ته ما وژلی نه شې، دا مرگ مې د نوي ژوند زېری دی، نو له مرگ وروسته ژوند پیلېږي. که په ژوند کې اضداد نه وي، وخت به په انسان نه تېرېده، ژوند به بې خونده وه.

خینې خلک وایي، کاشکې خواني وای، دوی داسې فکر کوي، چې زړښت د خوانۍ پای دی، مرگ ته نږدې کېدل دي، بیا هم دوی فکر کوي چې مرگ نابودي او نست کېدل دي، چې حقیقت داسې نه ده، مرگ بودي او هستي ده.

د ځوانۍ په قدر زوړ پوهېږي، د خوشحالۍ احساس هغه څوک کولای شي، چې ډېر خفګانونه يې ليدلي وي، د صحت په قدر مريض پوهېږي، خو بيا هم د انسان د ژوند هره دوره بېل خوند لري او انسان بايد د ژوند په هر پړاو کې خوشحال وي. کله چې يوه مېوه داره ونه ګل وکړي، ښه ښکاري او ګلانو ته يې ټول ګوري، د همدې ونې شنه مېوه بېل خوند او پخه مېوه جدا خوند لري.

که چېرې يو کس ټول عمر ځوان وي، اولادونه يې پيدا، ځوانان، سپين ږيري او مړه شي او دی ځوان وي، د داسې ژوند نه خوند نه شي اخېستلای. د کال له څلورو فصلونو انسانان، حيوانات او نباتات ګټې اخلي. که چېرې ژمی نه وای، بارانونه به نه وه، سيندونه او نهرونه به وچ وو او للمې به بې حاصله وې. غرونه او درې به ښکلې او شنې نه وې او ټول به وچ ډاګ وو. که چېرې اوړی او ګرمي نه وای، مېوې به نه پخېدای، ټولې غلې دانې به خامې وې، نو د هر پړاو په تېرېدو او ختمېدو کې د بل پړاو د پيدايښت څرک ليدل کېږي.

کوچنی وم، ځوان شوم، په سر کې مې سپين ولوېد او بالاخره مړ کېږم، خو ښه ده چې ټول عمر ځوان پاتې نه شوم!

***په تقدير ايمان درلود انسان ته د ژوند کولو هيله ورکوي او د اضدادو فلسفې مفهوم هم دی چې انسان به د متقابلو شيانو سره وخت تېروي او ټول ضدين د انسان د خير لپاره پيدا شوي دي، چې ښه مثال يې د ژوند او مرګ فلسفه ده. دوی مرګ د انسان هستي، بودي او کاميابي ګڼي او د مسلمان انسان لپاره ريښتيا همداسې ده.***

## انسان او فکر

انسانه! فکر دی پیاوړی کړه، چې د بدن دننني او بهرني حسونه دي سم کارونه وکړي. د ښه فکر پایله ده چې لاسونه د خیر کارونه کوي، سترګې ګناه نه کوي، په غوږونو غیبت نه اوري، په پښو عبادتخای ته ځي، د نورو درد احساسولی شي او د عواطفو رښتینولي دې ښکاره او خیالات دې سپیڅلي دي. فکر او عقل چې بې لارې شي، ټول بدن خراب کارونه کوي، نو ځکه فکري قوت انسان ته ډېره پیاوړتیا ورکوي او دغه قوت د نړۍ له ټولو قوتونو بهتر دی.

که غواړئ چې لوی او نوموتی انسان په انسانانو کې اوسئ، نو لوی فکر ولرئ او هېڅکله خان لکه بندي مرغه مه بندي کوئ. هغوی چې د نړیوال فکر څښتنان دي، ډېر ژر د خلکو زړونه نه شي تسخیرولی او د عوامو په زړونو کې ځای نشي پیدا کولای او هغه چې ورځنی خبرې کوي، ډېر ژر د خلکو په خوا منل کېږي او هېرېږي. څوک چې ژر د شهرت خاوند شي، ژر له منځه ځي او هغه چې د وخت په تېرېدلو نوم پیدا کوي، د هغوی نوم تلپاتې وي. تېز بارانونه ډېر سیلونه راوړي او [illegible] ر ژره مځکه خړوبوي، خو ژر وچېږي، په مقابل کې هغه بارانونه چې ور[illegible] و او دوامداره ورېږي، د مځکې تل ته یې نم رسېږي او خطرناک [illegible]

هو! هغه افتخار چې په سختۍ لاس ته راځي، لزت یې ډېر وي.

دودۍ او یخې اوبه هغه ورځ ته خوند ورکوي، چې په ډېرو تکلیفونو یې پیدا کړي وي او نه ورته وږی او تږی وي، دودۍ او اوبه موړ ته خوند نه ورکوي.

په ځینو ځایونو کې جسمي او بهرولي ښکلاوو ته ارزښت ورکول کېږي او د بدن د ښکلا په نامه زښت زیات روزنځایونه لري او ډېر ځوانان په ډېرو لګښتونو خپل بدنونه جوړوي، چې دې ته بهروني ښکلا وايي، خو ځينو ځایونو کې بل ډول ښکلاوو ته ضرورت دی او د بهرولي ښکلا نه داخلي ښکلا ته ډېره اړتیا ده، چې د هغې جملې د فکر ښکلا په نامه ډېر تمرین ځایونو ته ضرورت لیدل کېږي.

که په سلګونو اثار ولولو، لوړ تحصیلي سندونه ولرو، د عمر ډېر کلونه مو تیر شوې وي، خو د خپل علمي فکر څښتن نه اوسو، د فکري تمرین صلاحیت ونه لرو، نو کله به هم کامیاب انسانان نه شو.

هر انسان مغز لري، خو د مغز سم پالل دي چې انسان ترې سمه ګټه اخېستلای شي. یو عالم وايي:

«تر بې مغزه انسانه

بې مغزه کدو هم ښه دی

ځکه چې

له بېمغزی سره سره

بیا هم

مغزو ته ګټه رسوي»

له ځینو کتابونو پرته د هر کتاب خبرې سمې نه وي او د ځینو پوهانو مېرا د هر پوهان خبره د منلو وړ نه وي، نو ځکه په صنف کې محصلانو ته وایم چې زما ټولې خبرې سمې نه دي او نه د کتابونو، نو له همدې امله کوښښ وکړئ، چې د خپل فکر څښتنان اوسئ.

امام غزالي وايي: «چې فکر پوخ شي خبرې کمېږي»، د دې وینا په تائید د یوې علمي موضوع په اړه لږ لوستل او لیکل او ډېر فکر کول پکار دي. په ځینو کورونو کې والدین خپلو اولادونو ته وايي: د فلاني په شان شه او د بېلګې په ډول د نورو کورنیو ماشومان ورته ښيئ، چې دا سم عمل نه دی.

د انساني توپیرونو په نظر کې نیولو سره د نړۍ انسانان توپیر لري، نو پرېږدئ چې ستا د کورنۍ ماشوم په خپل خوښه فکر وکړي او فکر یې و روزل شي.
په نړیوالو ادبیاتو کې هغه کسان کامیاب وو، چې د منفرد فکر څښتن و او کله هم د نورو په فکرونو پسې تللي نه دي او نه په دې فکر کې وو چې څومره خلک به د ده فکر مني. د ځینو پوهانو په فکرونو او نظرونو رشخند وهل شوی، خو اوس نړیوال پوهان دي او له لاس ته راړونو یې تولنه گټه اخلي.
مولانا د فکري تفکر په اړه وایي:
ای برادر تو فقط اندیشه ی
ما بقی تو استخوان و ریشه ی
د انسان باطن له ظاهره خورا بهتره دی. د انسانانو حساب په ککرو نه کېږي، بلکې په ککرو کې په مغز کېږي. د انساني سرمایي پېژندنې نوې شوې دي، نور نو سرشمېرنه ـ نه، بلکې مغز شمېرنه کېږي.
*د انسان یوه منفرده ځانگړنه د نورو ژوندیو ځیزونو سره دا دی چې د فکر کولو او ترې د مثبتې گټې اخېستنې توانایي لري، د انساني سرمایي په نظر کې نیولو سره فکري او علمي خلک د انسانانو په شمېر کې راځي. دېرې انساني مثبتې کړنې له فکر نه سرچینه اخلي، نو ځکه انسان باید د ځان او ټولنې د خدمت لپاره په فکر کولو روږدی وي.*
*د ذهني ځواک ځینې تر ټولو حساسې او په نتیجه کې د هستۍ تر ټولو پیاوړې انرژي او ځواک دی.*

## انسان

په دنیا کې ډېر شیان پېژندل کېږي، خو د څه شي پېژندل چې ستونزمن دی، هغه انسان دی.

د انساني توپیرونو په نظر کې نیولو سره د نړۍ د ټولو انسانانو بهرني جوړښتونه (قد، قواره، سترګې او وزن) سره توپیر لري او هم د انسان دننني جوړښتونه په شخصیت جوړولو کې بنستیز اصل جوړوي او هر څوک نه شي کولای، چې په اسانۍ سره د نورو انسانانو عواطف، احساسات، جذبات او دننني نور توکي وپېژني، نو له همدې امله نه شو کولای، چې انسان په اسانۍ وپېژنو.

د ښه انسان پېژندلو لپاره د ده د سیرت په اړه پوهاوی اړین دی، نه صورت. که مخالف جنس ته د ښکلا لپاره دنده ورکوو، دمالدار صفت د پیسو لپاره کوو، په سپینو جامو کې د هغه چا عزت کوو، چې د خلکو د تیر ایستلو لپاره د اسمان په شان کله شین او کله وریځ وي، همدارنګه داسې نور لاملونه ظاهري جوړښتونه دي، چې که د انسان د پوهې او شعور کچه لوړه وي، د ظاهر پر ځای د انسان قیمت د باطن په نظر کې نیولو سره تلي.

په لوی غره کې د قیمتي کانو پیدا کول، صیقل کول، ترې استفاده کول او اصلیت معلومول اسان کار دی، خو د یو ښه انسان پېژندل اسان کار نه دی، د همدې کانو د جوهر معلومولو نه د انسان جوهر معلومول ستونزمن کار دی.

په مرغانو کې اصل او کوته شته، د اصلو مرغانو پیدا کول او نیول او همدارنګه د دغو مرغانو لوړه بیه، په دې دلالت کوي، چې په حیواناتو کې

هم اصیل شته او د داسې مرغانو ارزښت د اصلیت پر بنا او ښست ټاکل کېږي. په انسانانو کې هم اصیل او کم اصل شته، چې پېژندل یې اسان کار نه دی، خو کله کله په اصیلو کې کم اصل او کم اصلو کې اصیل هم پیدا کېږي.

اسمان په یو حال نه دی، شین شي، میوې پخوي، وریخ شي، بارانونه وروي او کله کله ږلۍ او واورې هم وروي. ډېر انسانان په یو حال نه وي، کله د مسجد په کونج کې ناست نصیحتونه کوي، د شپې د میوو پیالې ډکوي او سبا پر حرامو اخته د غریبو او بیچارو نه رشوتونه اخلي، یو انسان دی، کله ملا او کله بلا شي، چې د داسې انسانانو پېژندل د وګړ پېژندنې متخصص هم نه شي کولای.بیت دی:

ای د لیونیانو نیکه مار ښه که ملا ښه دی
تن د زهرو ډک ښه دی که زړه ډک د بلا ښه دی

په سپینو جامو کې ځینې داسې تور زړي انسانان شته، چې زړونه یې له بلاوو ډک او د ولس په سترګو کې خاورې اچوي.

که یو انسان د غره په څوکه ودرېږي او لاندې وګوري، نور انسانان ورته واړه ښکاري، چې دا یو طبیعي اصل دی، خو په حقیقت کې دوی تول کوچني نه دي، ځکه چې د دوی ظاهر په سترګو واړه ښکاري، خو د انسان باطن له لرې او نږدې په اسانۍ نه ښکاري، نو ځکه یې پېژندل اسان نه دی.

*انسان پېژندنه ستونزمنه موضوع ده، چې دلایل یې زښت ډېر دي، خو د انسانی دوه ګونو ښکلاوو په نظر کې نیولو سره د انسان جوهر او اصلیت چې د داخلي توکو سره اړیکې لري د ارزښت وړ دي.*

*د ظاهر پر ځای باطن ته متوجې شئ او د مال، دولت، نسب، موقف، جنسیت او ځینو نورو بې معنا توکو پر ځای انساني معنا لرونکیو شیانو ته ارزښت ورکړئ.*

## د انسان ځواني

ځواني د انسان د هلو ځلو هغه مرحله ده، چې مغز یې د کار او د بدن غړي یې د زحمت لپاره اماده وي. که د ځوانۍ په قدر پوه نه شو، په زړښت کې به ډېر ارمانونه وکړو، دا دوره د کار، تحصیل، خدمت او عبادت لپاره یو ښه وخت دی. سړی چې زوړ شي د نورو محتاج شي، ډېر وخت ناروغ او د نورو د اوږو بار شي. له انسانانو سربېره حیوانات، نباتات او جمادات هم ځواني او زړښت لري.

ونه چې ځوانه وي، ښه سیوری کوي، ښاخونه یې په خپل وخت له مېوو ډک وي او ښکلا ورسره وي، همدا ونه چې زړه شي، چینجي یې وهي، مریضه شي او بلاخره تنه یې ورسته له لرګیو یې هم ګټه نه اخېستل کېږي.
د ونې د خدمت وخت هم د ځوانۍ مرحله ده.

ځوان غویه ښه قلبه کوي او مځکې ښې اړوي، د دهقان د مځکې د کرلو او توخم اچولو وسیله ګرځي، خو برعکس زوړ غویه دا کار نه شي کولای او قصاب یې د حلالې لپاره اخلي، د زوړ مال غوښه خلک نه خوښوي او په مقابل کې د ځوان مال غوښه په لوړه بیه اخلي.

باز په ځوانۍ کې خپل مالک ته ښه ښکار کولای شي، چې زوړ شي له کاره ولوېږي.

په جماداتو کې ځوان غر ښکلی وي او له تېږو یې ګټه اخېستل کېدای شي او د زوړ غره تېږې پکه او خوړل شوې وي او د ګټې اخېستنې نه وي.

په هرې تولنې کې د پرمختګ لاملان ځوانان دي، له دوی سره باید نوي او ځوان فکرونه وي. اصلي او حقیقي ځوان هماغه دی، چې د ځوانۍ په

مفهوم پوه وي. که دی ځوان او کارونه د زړو کوي، دې ته د ځوان په قواره او جسامت زوړ ویلای شو.

ځواني د متو غځېدلو په معنا نه ده، نه د قد لوړوالي ته وایي او نه د عمر تېرېدل دي، بلکې ځواني د پوهې او فکر ده چې د ځوان او زوړ توپیر په همدې فکر کېږي.

د عمر په لحاظ ډېر ځوانان د هغو شنډو ونو په شان دي، چې میوې نه لري، په مقابل کې ځینې فکرمند ځوانان هغه مثمرې ونې دي چې د خپل فکر محصول د ونو خوږو مېوو په شان ورکوي.

ځواني د قد لوړوالی هم نه دی، ځکه چې د ونو قد هم ورځ تر بلې لوړیږي، ځواني د ښکلا په معنا هم نه ده، ځکه چې ډېر ښکلي شیان د هر چا په معیار پوره نه وي او هر ښکلی شی د هر چا په ذوق برابر نه وي، نو بیا هم وایم چې ځواني د فکر او پوهې پکار ده نه د بدن د نورو غړو.

*د وخت په تېریدلو د انسان په دوه ګونو رغښتونو(فزیکي او معنوي) کې تغیرات منځ ته راځي. د جسمي کارونو لپاره ځواني خورا ښه وخت دی او د فکري او علمي لاس ته راوړنو لپاره هم د ځوانی پیر مهم دی، نو ځکه ټول انسانان باید د ځوانی په قدر پوه او له وخته سمه ګټه واخلي. په ځوانی کې د انسان بهرنی جوړښت جسمي کارونو ته جوړ وي، خو جسمي کارونو ته ټوله لارښوونه د انسان له دننني جوړښته کېږي، نو د ظاهري ځوانی سره باطني ځواک هم اړین دی.*

## انساني جوړښتونه

د نړۍ انسانان دوه ډوله (فزیکي او معنوي) جوړښتونه لري. په فزیکي لحاظ ډېر انسانان د ځانګړي وزن درلودونکي دي، خو په معنوي لحاظ په ټول پوره انسانان کم پیدا کېږي. چېرته چې پوهه ډېره وي، هلته معنویاتو ته ارزښت ورکول کېږي او چېرته چې پوهه کمه وي هلته بیا د معنویاتو پرځای نورو شیانو ته! چې د پوهې قیمت کم نه شي او اکثره وګړي د علم او پوهې پر ګانه سمبال نشي، د معنویاتو ارزښت به لوړ نه شي.

په حیواناتو کې شیدې لرونکې څاروي له هغو څارویو بهتر دي، چې خلک ورنه ګټه نشي اخېستلای، دلته د انسانانو په ډول په حیواناتو کې هم توپیر لېدل کېږي.

په نباتاتو کې مېوه لرونکې ونې د هغوی خلکو په شان دي چې پوهه لري او هر وخت د ځان پر ځای د عوامو په فکر کې دي.

په ټولې نړۍ کې په هغوی انسانانو شمار کېږي چې پوهه لري او هغه انسانان چې پوهه نه لري، د هغوی بې مېوو ونو په شان دي، چې له لرګیو یې هم ګټه نه اخېستل کېږي.

د انسان جسمي کار د بېروني جوړښت او جسم سره اړیکه لري او فکري کار د پوهې سره. فکري کار له جسمي کاره بهتر دی.

که یو دهقان د غنمو کرلو لپاره ځمکه اړوي او یا نور جسماني کارونه کوي او همدارنګه د پوهنتون استاد شاګردانو ته درس ورکوي او هر وخت په فکري او ذهني کارونو مشغول وي، دواړه کارونه دي، خو د دهقان له کاره د استاد کار بهتر دی. ټولې نړۍ کې له جسمي کارونو فکري کارونو ته برترۍ ورکول کېږي.

نړۍ فکري يرغلونه پيل کړي دي او غواړي چې په ټولې نړۍ د فکر په واسطه مشري وکړي، دوی پوه شوي چې د جسمي يرغلونو پرځای فکري جنګونه کوي. د انسان قدر او عزت د هغه د معنوياتو، پوهې او اخلاقو په نظر کې نيولو سره حتمي دی، نه په نورو لاملونو. ډېر خلک د بدو خلکو عزت کوي، چې دا په دې دلالت کوي، چې دوی ښه خلک نه دي. د ظالم ملګرتيا کوي، هر ځای يې صفتونه کوي، چې دا يې د ويرې يو لامل دی. انسان کې چې انسانيت نه وي او په حقيقي پوهې سمبال نه وي، د انسانيت له دايرې وزي.

د انسان انسانيت په نظر کې ونيسئ چې د معنوياتو سره نېغه اړيکه لري، نه مال، دولت، موقف، قوميت، خپلوي، نژادي او سمتي اړيکې. د انسان په نوم ټولو خلک نومول کېږي او هر چاته د انسان په نوم غږ کېږي، خو د انسانيت او شرافت ځانګړنې په ډېرو کموکې موندل کېږي.هو!

انسانيت څه په دولت نه دی رحمانه

بت که جوړ کړې د سرو زرو انسان نه دی

په ساختماني ډول د سرو زرو له بته د انسان قيمت کم دی، خو که د مانا په لحاظ انمان د انسانيت په تول پوره وي، د نړۍ هېڅ شي سره يې بها نه شو برابرولی. ځينې انسانان لوړ قيمت لري او په کلونو کلونو يې نومونه تلپاتې وي، خو د ځينو انسانانو بها دومره کمه وي، چې په ژوندون او له مرګه وروسته يې هم ارزښت کم وي.

ای انسانانو! که غواړئ چې پرمختګ وکړئ، نو د مادياتو پر ځای معنوياتو ته ارزښت ورکړئ. د ناپوهو مشرانو پرځای پوه انسانان مشران وټاکئ. د ګنهګارو پرځای بې ګناهو ته رايه ورکړئ.

*انسان هماغه دی، چې په ځان کې د خپل نوم(انسان) معنا پيدا کړي، دی د خير ښيګنې لپاره پيدا شوی او دنده يې انسانانو ته مينه ورکول دي.*

## انسان د انسان جنت او دوزخ دی

تولې ستونزې په تقدیر کې لیکل شوي وي، خو دغه ستونزې انسان ـ انسان ته رسوي.

هر انسان د بل انسان جنت هم جوړېدای شي او که د انسانیت له دایرې ووځي، نو بیا همدا انسان د انسان دوزخ جوړېږي.

دوزخ یوازې په اور کې د اچولو په مانا نه دی، بلکې ځینې داسې ستونزې هم شته، چې انسان په اور نه سوزول کېږي، خو له اوره بتر وي.

که د یو چا حق خوړل کېږي او د ده اولادونه د شپې ډوډۍ ونه لري، د دوی لپاره دا لوی دوزخ دی.

انسان هغه فکرمند او پوه ژوی دی، چې د نورو حیواناتو په شان خوړل«داړل» نه کوي، خو د دوی زیان رسونه له حیواناتو څو مرتبې بتره وي. حیوان چې وږی شي، انسان ته زیان رسوي، خو ځینې انسانان چې خومره مړېږي په هماغه اندازه وږي کېږي، د حیوان سولې مړېږي، خو د ځینو انسانانو مړښت له مرګه وروسته په خاورو وي او کله چې تري روح لاړ شي، نو بیا انسانانو ته زیان رسولی نه شي، نو ځکه ورنه خلک په امان کې شي او که له مرګه وروسته یې په واک کې د زیان رسولو قوت وي، نو بیا هم انسانانو ته په زیان رسولو دریغ نه کوي.

ځینې وخت ډېر انسانان د نورو انسانانو غیبت کوي، په نورو پسې بدې ردې وایي، د مالدار صفت د پیسو لپاره کوي، د موقف خاوند یادونه د موقف لپاره وي او همدارنګه په سلګونو ډوله بې مانا صفتونه کوي، کله مو هم د انسان ستاینه د ده د فکر او پوهې په نظر کې نیولو سره ونه کړه، نه مو لیاقت

وپېژنده او نه انسان. نه د پوهې په قدر او قيمت پوه شو او نه مو د پوهانو قدر وکړ. د پوهانو قدر نه کوو او د ناپوهانو په ستاينې مو خولې ستړې شوې، دا هغه انسانان دي چې بيا هم د انسانانو دوزخونه دي، هغه چې د ستاينې لايق دی غندو يې او هغه چې د غندلو لياقت لري چاپلوسي يې کوو.

د اور تېې تداوي کېږي، خو ځينې انساني دننني تېونه جوړښت نه لري، که اور انسان ته زيان رسوي په حقيقت کې عقل او پوهه نه لري او دا کار يې غير ارادي عمل دی، يعنې د اور په زيان رسولو کې اختيار د اور سره نه دی، خو انساني تېونه هغه دردونه او کړاوونه دي چې په ارادي ډول د اشرف المخلوقات «انسانانو» په واسطه سرته رسېږي او د ده واک پکې حتمي دی.

د جبر و اختيار په فلسفه کې اختيار انسان ته ورکړل شوی چې د نورو انسانانو سره ښېگنې کوي او که ستونزې ورته پيدا کوي، خو له دې اختياره ډېر انسانان بده گټه اخلي.

ای انسانه! ستا د نوم مانا سپيڅلتيا ده، په تا کې بايد ټولې انساني ښېگنې موجودې وې، ته بايد انسان، حيوان او نبات ته خير ښېگنه ورسوې، ته خوشحالي يې، مينه يې، کاميابي يې او نور ... خو تا د خپل نوم معنا په نظر کې ونه نيوله، انسانانو ته د گټې پر ځای زيان رسوې، د خوشحالی پر ځای خفگانونه ورکوې، د مينې پر ځای نفرتونه خپروې، څه چې ځان ته خوښوې بل ته يې نه غواړې.

*انسانه! انسانانو ته جنت شه چې خوشبويي دې حس شي، د شيدو، اوبو او شرابو له ويالو دې گټه واخيستل شي، مرگ نست شي او ژوندون دايمي شي.*

## انسان او انسان وژنه

په نړۍ کې په ملیاردونو انسان وژنه انسانانو سرتـه رسـولې ده.که پـه اسـلحو مرګ ژوبله کېږي او یا د بم اتوم په واسطه انسانان وژل کېږي، جـوړونکي او استعمالوونکي یې انسانان دي.اوس هم ځینې ټولنې د هغو جنګیالیو سـتاینه کوي، چې پـه سـلګونو کسـان یـې ناحقـه وژلي دي او د داسـې کسـانو سره مخامخېږم، چې د خپلو ظلمونو ستاینه کوي او کومـه مرګ ژوبلـه چـې یـې کړې، په افتخار یې یادوي.

په ځینو ځایونو کې ډېر شرخوښوونکیو خلکـو تـه د زمـري لقـب ورکـوي. یـا وایي فلانی سړی د زمـري پـه شـان زړه ور دی، لـه دې سره چـې زمـری پـه ځنګل کې هغه ظالم حیوان دی، چې په زور مشـري کـوي، هـر وخـت یـې منګولې په وینو سرې وي، نو بیـا هـم انسـان چـې اشرف المخلوقـات دی، د زمري په لقب ځکه خوشحالېږي، چې خلکو تـه پیـاوړی ښـکاره شي. زمـری څلور پښې لري او ځنګلي حیوان دی، خو په ځینو وروسته پاتې ټولنـو کـې چې په ظلم اوس هم افتخار کېږي او د ظالم راج پرې چلېږي، نـو ځکـه د زمري پر نوم افتخار کوي.

په تاریخونو کې د ځینو کسانو ستاینه د ډېرې مرګ ژوبلې په نظر کې نیولو سره کېږي او تاریخ لیکونکي هم سم قضاوت نه کوي، چې تا حقه انسان وژنه لویه ګناه ده.

په ادبیاتو کې چې د جنګ او جګړې خبرې واورم، نو ډېر خفه شم او دا فکر کوم چې تر کومه به د جنګ طرفدار یو، تر کومه به په دې افتخار کوو چې فلاني سړي د انسانانو له سرونو ځلي جوړ کړي وه، فلانی سړی په یو ځان له

سلګونو کسانو سره جنګېده. ایا د انسانانو وژنه افتخار دی؟ ایا انسانانو ته زیان رسونه انساني او که غیر انساني عمل دی؟ انسان مینې ته اړتیا لري او که نفرت ته؟ انسان ته خدمت وشي او که خیانت؟ ولې وینه تویول راته مینه ښکاري او مینه ورکول راته ستونزه!

اوس هم ډېر کسان په هغه چا پسې ځي او په افتخار یې یادوي او له عکسونو یې ځان ته البومونه جوړوي، چې د سلګونو کورونو د ورانولو مسوول دي. د ظالم او ښه انسان په پېژندلو کې اوس هم سهوه کېږو، اوس هم د هغه چا لاسونه ښکلوو چې لاسونه یې د پرېکولو دي. موږ هغه مظلومان یو چې ظالم ته مو ښاغلی وایو، ظالم او خونکار ته مو د ګلو هارونه پر غاړه کړل. تاسې څه فکر کوئ چې ظالم ملامته دی که مظلوم؟ خونکار ملامته دی او یا د چا چې خون شوی؟ فکر کوم له ظالمه ناپوهه مظلوم ډېر ملامته دی، له خونکاره هغه ډېر ګرم دی چې ظلم پرې کېږي.

*انسان باید په ښو اعمالو افتخار وکړي او له بدو اعمال ځان وساتي، انسان د ارثي او محیطي عواملو په سبب د بېلا بېلو خویونو درلودونکی وي، خو ښه انسان هماغه دی، چې د ځان او ټولنې په ګټه وي.*

## انسان او ښوونه او روزنه

نور او سپین یو شان نه دي. غر او سمه جګ او ټیټ دي. په دریاب کې ماهیان په یو وزن نه دي د نړۍ انسانان یو رنګ نه دي، نو ځکه پوه او ناپوه برابر نه دي، خو ځینو ځایونو کې برعکس ناپوه او پوه سره برابر نه دي، نو ځکه ناپوهان د پوهانو مشران دي. په جرګو او مرکو کې د خبرو حق همدوی ته ورکول کېږي، ځکه چې ډېر خلک د پوهانو په نسبت د ناپوهانو په خبرو پوهېږي. په کلي کور کې ملکان باید همدوی وي. دوی د ولس له نبضه خبر دي او د وخت و شرایطو سره سم ځان ډول ډول جوړولای شي.

که چېرې ټولنه وروسته پاتې وي، د علم د ارزښت ځای پیسو، موقف او قومي مسایلو نیولی وي، نو حتمي خبره ده چې ډېر خلک د پوهانو پر ځای د ناپوهانو قدر کوي. کله چې د ټولنې ډېر خلک پوهان وي، نو هلته بیا پوهان مشري کوي او کله چې د ټولنې د خلکو د پوهې کچه ټیټه وي، نو هلته بیا مشران ډېر وخت ناپوهان وي.

د انسان درجه د پوهې په نظر کې نیولو سره ټاکل کېږي. په نړۍ کې په هغوی انسانانو حساب کېږي چې پوهه لري او هغه چې پوهه نه لري، د دې پرځای چې ټولنې ته یې ګټه ورسېږي، زیان رسوي.

ډېره پوهه د دې پر ځای چې د انسان قدر او قیمت لوړ کړي، برعکس دښمني پیدا کوي، علما او پوهان په ټولنې کې د ناپوهانو تائید کوي او ځینو داسې مسایلو ته نغوته کوي، چې د ټولنې ډېر ناپوهان یکې خپل تصویر ګوري او داسې فکر کوي، چې لیکوال له دوی سره دښمني لري او هدف یې همدوی دي. مال او دولت به د انسان قیمت لوړ کړي، خو پوهه د نورو د کینې سبب ګرځي.

ښوونه زده کېږي. ځینو خلکو ډېر کتابونه لوستي، ډېر کتابونه یې لیکلي، د پوهنتونونو ډېرې شهادت نامې لري او له همدې امله په لوړو موقفونو کار هم کوي. ظاهري قیافه یې هم بده نه ده، د ورځې یوه کورتۍ اخلي، د بوټانو یې شمار نه شته، کله په یو او کله په بل شان موټرو کې ګرځي، د ساتونکیو

شمېر يې زيات دی، خو چې اخلاقو ته يې وګورې او يا انساني سلوک يې مطالعه کړې، نو پوه به شې چې روزنيزه خوا يې ډېره نيمګړې ده. په انساني اعمالو کې د ښوونې عملي اغېز ته روزنه وايي. که چېرې ښوونه د انسان په سلوک، کردار او کړو وړو مثبت تاثير وکړي، دې ته روزنه وايي او که يې ونه کړي، نو ښوونه يې کسب کړې، خو عملي کړې يې نه ده.

قران کريم د نړۍ خورا ښه ښوونيز کتاب دی، نو مسلمانان که په قران کريم عمل وکړي، نو دوی به د نړۍ بهترين انسانان وي، نو دا چې په قراني احکامو څومره عمل کوو، ځواب يې تاسې لوستونکيو ته پرېږدم.

که پيلوټ ته نظري زده کړه ورکړل شي، خو عملاً د طيارې د پرواز قابليت ونه لري، د دې مانا دا ده، چې ښوونه يې تر لاسه کړه، خو روزنه يې ناسمه ده.

که يو تجار د ډېرو پيسو کاروبار ولري، خو د ګټې په لاس ته راوړلو کې د حرامو په فکر کې نه وي، دا په دې مانا ده، چې يو کس به ډېر کتابونه لوستي وي او ډېر علمي او تحصيلي اسناد به لري، خو عمل به نه کوي.

انسان، ښوونه او روزنه د مثلث هغه درې خواوې دي، چې يو د بل سره اړيکې لري، ښوونه انسان ته لارښوونه کوي، که انسان په ښوونې عمل وکړي د انسانيت خورا ښه سمبول به وي او د ښوونې او روزنې پر ګانه سمبال انسان کولای شي، چې ځان او ټولنې ته د خدمت مصدر وګرځي.

*هر انسان بايد د ښوونې او روزنې پر اصولو برابر ژوند وکړي، که يو کس ډېر کتابونه لوستي وي، خو په روزمره ژوند کې يې عملي نه کړي، په دې معنا چې نظري زده کړه يې کړې، خو عملي کړې يې نه ده.*

*ای انسانه! له پيداښته تر مرګه ښوونه حاصل او عمل پرې وکړه.*

## انسانه انسان شه!

د انسان پېژندل اسانه ـ نه ده، نو ځکه یو عالم وايي: زه په شپه کې دومره نه وېرېږم لکه د ورځې چې وېرېږم، له دښمنه دومره وېره نه لرم، څومره چې یې له دوسته لرم، له حیوانه دومره نه وېرېږم، څومره چې له انسانه وېرېږم.

انسان اشرف المخلوقات دی، د نورو ساکښو نه یې یو امتیاز په دې کې دی، چې د فکر کولو توانایي لري او کولای شي جهانونـه جـوړ کـړي، خـو کـه د انسانیت له دایرې ووځې، نو مجبوره چې د ده «انسان» له ویرې په کور کـې حیوانات وساتل شي.

ځینې انسانان د انسانانو له ویرې د ځان ساتنې لپـاره ژوي سـاتي، د یـو عـالم وینا ده:کروندګر په پټیو کې د انسانانو کالبتونه جوړوي چـې مرغـان او ژوي پټیو ته زیان ونه رسوي، که دوی د انسان پر ځای د ژویو کالبت ولګوي، نـو مرغان ترې نه وېرېږي، خو له انسانه وېرېږي، وايي:

«کروندګر ځکه

څروي د انسان په څېره

جوړوي

چې مرغان

له بلې هرې بلا څخه

دومره نه ترهېږي.»

کله چې په توره شپه کې روان یم، د نړۍ له هېڅ شي دومره نه ویرېږم، لکـه د انسانه چې ویرېږم. که حیوان ته زیان ورسول شي، امکان لري چې عکـس

العمل وښيئ او ببرته انسان ته زيان ورسوي، خو ځينې داسې انسانان هم شته چې بل انسان ته بې دليله زيان رسوي.

کله داسې هم شوي، چې د شپې له خوا د خپل سوري ويرېدلی يم او په دې فکر کې شوی يم چې خپل سوری راته زيان ونه رسوي.

د ځينو انسانانو دومره ويرېدلی يم چې له ځانه مې نفرت دی او کله کله زه هم له دوی سره سيالي کوم او ځان ته زيان رسوم.

د شپې له خوا په خوب کې وينم چې انسانان، انسانان وژني او لاسونه يې په وينو سره دي، خو يو شمېر خلک همدوی روغتونونو ته وړي او هتله يې درملنه کوي، نو شکر ادا کوم چې که ځينې انسانان د انسانانو ژوند اخلي، خو يو شمېر شته چې د دوی ژوند ژغوري.

انسانه انسان شه! چې ټولنه انساني شي او خلک پکې خوشحاله ژوند وکړي. د ستونزو رامنځته کوونکی ته يې او مشکلاتو حلوونکی هم ته يې، نو له تا غوښتنه دا ده چې د خلکو د درد دوا شې، نه دا چې دردونه ورکړې.

هو! له هغه چا وېره پکار ده چې د الله تعالی نه وېرېږي.

*په نړۍ کې انسانانو ته زيان رسوونه د انسانان په واسطه ده. د يوې احصايې له مخې په نړۍ کې هر کال د انسانانو په واسطه ۳۷۵۰۰۰ انسانان وژل کېږي، په دې هيله چې انسان د بل انسان مرګ خپل مرګ وګڼي، د هغه درد احساس کړي، د هغه ولږه خپله ولږه وګڼي، د هغه خوشحالي خپل نيکبختي.*

*انسانه! د خير رسولو سمبول شه، د مينې دنيا شه، د ژوند پيل شه، د غمونو انجام شه، جنت شه، خوشحالي شه او نبه انسان شه!*

## د انسان ارزښت ټاکنه

کله چې د
د انسانانو دننني تاثرات سره توپیر لري او هر یو د خپل ارزښت په نظر ټولنه نیولو سره له ټولنې امېدونه لري. د نړۍ ډېر انسانان د ځان او کورنۍ په اړه فکر کوي، خو ځینې انسانان نړیواله مفکوره لري او د ځان په پرتله جهان ته برتري ورکوي. هو!

ډېر تفاوت شته په انسان کې د مانا په لحاظ
واړه مشغول دي ځېنې ځان ځینې جهان جوړوي

په نړۍ کې د انساني توپیرونو موضوع حتمي ده، نو ځکه هر انسان په ټولنې کې خپل قدر او قیمت لري. په غره کې لوی لوی کاڼي ډېر وي، خو که د قیمتي کاڼو زېرمه پکې وموندل شي، له ټول غره څخه د قیمتي کاڼو څو نمونې غوره دي. ځینې انسانان په ټولنې کې د قیمت بها کاڼو په شان دي، چې ارزښت او قیمت یې ډېر وي. لکه څرنګه چې په غره کې د قیمتي کاڼو پیدا کول، تشخیصول او صیقل کول ستونزمن کار دی، دغه شان د انسان پېژندل هم اسان کار نه دی. ډېر انسانان د غرو د تیږو په شان دي او اقلیت د قیمتي کاڼو په شان. د بیروجو، زمرودو او الماسو یو ډول ګټه اخېستل کېږي او د غره له تیږو بل ډول. په نړۍ کې د انسانانو ارزښت ټاکنه په نسبي ډول معیاري ده، خو ځینو ځایونو کې برعکس د پوهانو پرځای د ناپوهانو عزت ډېر وي. چېرته چې اکثریت خلک پوهان وي، هلته د عالمانو ارزښت ډېر وي او چیرته چې اکثریت ناپوهه وي، هلته اکثریت مشران ناپوهان وي. پوه انسان که د ناپوه پر وړاندې عزت نه لرې، ملامته نه دی، ناپوه ملامته دی، چې د پوهې له ارزښته ناخبره دی.

*د انسان قدر او عزت د هغه د فکر او عمل په نظر کې نیولو سره وکړئ. ځینې خلک لکه شمع ځان سوزوي خو نورو انسانانو ته ګټه رسوي. د انسانانو معنویت په نظر کې نیولو سره یې ارزښت وټاکئ، نه د ځینو نورو بې معنا شیانو په نظر کې نیولو سره.*

## انسانانو ته وصیت

د نړۍ ټولو متقابلو شیانو پیدایښت کې حکمتونه پراته دي او د ژوند هر پړاو او هره واقعه بېلا بېل خوندونه لري. شپه که د استراحت لپاره ښه وخت دی، نو ورځ بیا د کار او هلو ځلو لپاره.

د ژوند و مرګ په فلسفه کې ډېر خلک ژوند ته خوشحاله او مرګ ته خفه کېږي، خو د دې فلسفې پلویان په دې فکر دي، چې د انسان مرګ یې انتها او انجام نه دی، بلکې اغاز دی. که یو انسان جنت ته لاړ شي، نو حقیقي ژوند هلته پیلېږي، خو که یو انسان ژوندی او هره لحظه پر منکراتو اخته وي، نو د ده لپاره له ژونده مرګ بهتر دی، نو له همدې امله شکر دی چې مرګ شته. زما د پیدایښت له لومړۍ ورځې راسره مرګ پیدا شو، خو د تقدیر په فلسفه کې تر اوسه ژوندی یم، خو که چېرې رانه روح لاړ شي، ورته خوشحاله یم. مرګ ته د دې لپاره خوشحاله نه یم چې خدای مه کړه پر منکراتو اخته یم. مرګ د انسان هغه انجام دی، چې د دایمي ژوند اغاز ترې پیلېږي. زما جنازه دې مسکینان، غریبان او دهقانان په اوږو کړي، زه د دوی د احسان پوروړی یم، د دهقان د لاس تناکې او زحمت و، چې ځمکې یې کرلې او ما یې د لاس غنم او بېلا بېلې مېوې خوړلې. چېرته چې ما درس ویلی، په کومو سړکونو چې زه له یوه ځایه بل ځای ته تلم، د غریب او بېچاره د خولو په برکت جوړ شوي وه. زما په جنازه دې هر څوک نه راځي؛ ځکه چې ډېر له دوی زما مرګ غوښته، مرګ یوازې د ساه او روح اخېستلو په معنا نه دی، یا مرګ یوازې هغه نه دی، چې په ټوپک مړ شي، دوی هره ورځ په غیر مستقیم ډول وژلم. دُعا تقدیر بدلوي، خو له دې مخکې چې دوی

ماته دعا وکړي، باید د خودي او ځان پېژندنې په مفهوم پوه شي. کله چې د انسان ذات جوړ نه وي، نو د داسې کس دُعا نه قبلېږي. زه د دوی دُعا ته محتاج نه یم، زه د دوی صله رحمي نه غواړم. ښار ته نږدې قبرستان کې مې خښ نه کړئ. نه غواړم چې د هغوی انسانانو د پښو خاورې زما پر قبر کښيني، چې له ما سره یې په دنیا کې د ښو پر ځای بد کړې دي. دا هغه انسانان دي، چې خپلو همجنسو او ناهمجنسو ته یې زیانونه رسول. نه غواړم چې دوی وګورم. په قبرستان کې هم د دوی له ګاونډیتوبه خوښ نه یم. زه له همدوی وتښتېدم، نه غواړم چې د دوی ناکردې دلته هم وګورم. له ښاره لرې په دښته کې د غتې ونې لاندې مې خښ کړئ. زما د کایناتو هغه توکي خوښېږي، چې نه عقل لري او نه پوهه، نه اشرف المخلوقات دي او نه د فکر کولو توانایي لري، خو بیا هم له انسان سره کومک کوي، زه له دغو خدمت کوونکیو توکیو ډېر خوشحال یم. زما دوستي له لمر سره ده، ټول عمر یې ما سره ښه کړې دي، انرژي یې راکوله، مېوې دانې یې پخولې او ما خوړلې، کله یې هم راته د ځینو انسانانو په ډول زیان نه دی رسولی، بې احسانه یې له ما سره ښېګڼه کړې. د زده کړیالۍ دوره کې سپوږمۍ راته رڼاکوله او ما ورته درس وایه، د غریبۍ پر وخت مې ډېر وخت د سپوږمۍ رڼا ته ډوډۍ خوړلې، غواړم چې د سپوږمۍ رڼا په قبر کې هم ووینم. د باد پر الوت او د باران په ورېدلو به هوا تغیرېده. باران د ځمکې ابادي ده او د ځمکې ابادي د انسانانو ابادي ده، دا هغه توکي دي چې د ډېرو انسانانو په پرتله یې له ما سره ډېرې مرستې کړې دي او هر وخت یې زما خدمت کړی او له عدالته یې کار اخېسته، له ما سره یې د ډېرو انسانانو په شان تعصب نه دی کړی، ډېرو انسانانو راته نفرت راکړی، خو په مقابل کې دغه بې فکره توکیو راسره مینه کړې ده، نو ځکه غواړم چې اوس هم له دغو توکیو ګټه واخلم او خپل د دوستۍ تار ورسره دوامداره وساتم.

د ونې لاندې مې خښ کړئ، په ژوندون راته همدې ونو بې احسانه مېوې راکولې، له سیورې یې ما ګټه اخېسته.

## انساني ژوند جوړونه

د نړۍ ډېر شیان پیدایښت، ځواني، زړښت او بلاخره مرګ لري، خو په انسانانو، حیواناتو او نباتاتو کې د انسان امتیاز په نورو توکیو زیات دی، ځکه نو په مخلوقاتو کې انسانانو ته بهتر ویل شوي دي.
انسانان په ټولو ژوندیو توکیو کې د بدن جوړښت اعجاز دی او د دوی فکري تولید او تمرین بې مثاله دی چې په هیڅ یو ژوندي موجود کې نشته.
د هر انسان سره حساب کېږي، نو ټول انسانان باید ژوند جوړ کړي نه ژوند تېر کړي. ژوند تېرول او ژوند جوړول سره توپیر لري، ژوند په هر شي تېرېږي، خو ژوند جوړول د انسان کار دی. یوپښتمه پېږی ده او د نړی په ډېرو شیانو د ژوند دورانونه تېر شوي دي چې ډېر څېزونو ژوند تېر کړی دی نه یې ژوند جوړ کړی دی، خو انسانان باید خپل ژوند د عقبی لپاره جوړ کړي او د انسانانو توپیر له نورو څېزونو سره په همدې ژوند تېرولو او ژوند جوړولو کې دی.
نباتات ژوندي دي، تکثر کوي، خوشحالي او خفګانونه لري او د انساناتو په شان احساسات لري، دغه نباتات هم د ژوند پړاوونه تېروي، خو د انسان ژوند، پیدایښت، خوشحالي او احساسات باید له نباتاتو توپیر ولري او دوی باید ژوند جوړ کړي.نباتات تکثر کوي او انسانان هم اولادونه پیدا کوي، چې د انسان وظیفه او لاربښوونه یې د اولادونو لپاره ژوند جوړول دي نه ژوند تېرول.
د انسان پیدایښت، حرکت، مرګ، ځواني او فکر باید د نړۍ له ټولو شیانو توپیر ولري. هغه انسانان پرمختګ کوي چې فکر جوړ کړي، د فکر جوړول په حقیقت کې د ژوند جوړول دي.
*د نړۍ په ټولو شیانو د کلونو دورانونه تېرېږي، خو انسان هغه دی، چې ژوند جوړ او د عقبا په فکر کې وي.*

## د انساني ژوند هدف

ښوونه د ژوند تېرولو وسیله ده او روزنه يې هدف يا ښوونه روبنا او روزنه زیربنا ده. ښوونه او روزنه يو د بل لپاره لازم او ملزوم دي او د ښوونيزې وسيلې په واسطه انسان خان هدف ته رسولی شي. هره کوټه چې چت ونه لري، د ژوند تېرولو لپاره سم او مساعد ځای نه وي، د کوټې دېوالونه وسیله ده چې سقف (چت) يوه ځانګړې وظيفه پر مخ وړي.

د انسان د پیدایښت اصلي منبع د پلار( XY )او د مور( XX )جنسي کروموزومونه دي، يعنې د مور و پلار د کروموزومونو د يوځای والي جنين لاس ته راځي او د مور و پلار د ډېرو بېروني او دننني خصوصیاتو د لېږد وظیفه د(RNA) ده.

د قرآن حکیمانه نظام د انسانانو لپاره د مور رحم ښوونېز تهداب ګڼلی دی. د ډېرو ښو مور و پلار نه داسې اولادونه پیداکېږي، چې د کورنی نوم ژوندي ساتي او د بدو والدينو نه بد اولادونه پيدا کېږي، خو کله کله يکې استثنات موجود وي.که د انسان تهداب د نطفې تاکلو د لومړۍ ورځې پیاوړی وي، نو حتماً به انسان د ښو ځانګړنو درلودونکی وي. هغه ونه ډېره پیاوړې وي چې ريښې يې په ځمکه کې هر طرف تللې وي، د ونو تهداب يې ريښې دي او د همدغو ريښو په واسطه ولاړې دي او د ډېرو توکيو خدمتونه کوي. غرونه ځای پر ځای ولاړ او ځمکه خوځېدو ته نه پرېږدي او ريښې يې ځمکه کې ښخې دي، يعنې د غرونو تهداب هم ډېر مهم دی او هر غر چې څومره لوړوالی لري له هغې زيات ژوروالی لري.

د غرونو د ژوند هدف هم په تهداب کې دی او د ځمکې لاندې ريښې دي چې غرونه پرې ولاړ دي. څنګه چې د انسان په ژوند جوړولو کې تهداب مهم دی دغه شان د غرونو او ونو لپاره هم تهداب مهم دی.

*دا نړۍ او يکې ټول شيان وسیله او روبنا ده. اصلي هدف او زیربنا د عقبا لاس ته راوړل دي.*

## انساني تحول

د نړۍ هر څه په تحول کې دي، ځينې شيان په لوييدو دي. لمر دغه لوی غرونه يو وخت کوچني وو او د ماشومتوب مرحلې يې تېرې کړې دي. بحرونه هم په لوييدو دي او د ژونديو موجوداتو تعداد پکې ورځ تر بلې په زياتېدو او لوييدو دي. کهکشانونه هم په تغيير او تبديل کې دي او ورځ تر بلې يې شمېر زياتېږي او کمېږي. انسان هم کوچنی وي او لوييږي، خو د انسان لوييدل، تغير او تحول بايد د نړۍ له ډېرو شيانو توپير ولري.

***

## انسان پېژندنه

مخامخ سره کيناستو او ويې ويل: ما پېژنې؟ زه «فلانی» يم. د لويې کورنۍ يم. ټوله کورنۍ مې لوی خلک دي. لس کاله کېږي چې پر بېلابېلو لويو موقفونو دندې پرمخ وړم. هر وخت په تلويزيون کې سياسي بحثونه کوم او د خان په اړه يې ځينې نورې خبرې هم وکړې.

ما ورته وويل: نه، زه دې نه پېژنم. زه په دې نه يم توانېدلی چې خپل نږدې دوست وپېژنم. د انسان پېژندل د ذات سره اړيکه لري او د يو کس له ذاته معلومات پيدا کول اسان کار نه دی.

## د انسان ظاهر بیني

زما یو ملګری د انسان په پېژندلو کې ظاهر ته ارزښت ورکاوه او د ده همفکره کسان زښت ډېر وه. دوی مخکې له دې چې د هندوانې رنګ او خوند معلوم کړي، په غټوالي یې غولېدل.

یوه ورځ ورسره روان وم، یو کس یې په غیر انساني اعمالو ولید، ما ته یې وویل: د«فلاني» قواري ته وګوره او کار ته یې وګوره!

قد یې دوه متره دی خو عقل نه لري!

سترګې لري خو بیا هم بې سترګو دی!

وزن یې له اوښ ډېر دی، خو د ماشومانو په شان کړنې کوي!

لوړې ژده کړې یې کړي، خو عمل پرې نه کوي.

ما ورته وویل: هو! د دوی ظاهري جوړښت انسانانو ته ورته دي، خو کارونه یې انساني نه دي، دا ځکه چې د انسان آره ذاتي پدیده له دننني جوړښت سره اړیکه لري، نه د بهرني جوړښت سره.

رحمان بابا وایي: «بت که جوړ کړې د سرو زرو انسان نه دی»، هو! بت د ځینو انسانانو په شان ښکلې قواره، لوړ رسا قد، بادامي سترګې به لري، خو دا چې روح نه لري، انسان کېدای نه شي.

انساني روح د انساني ذات پېژندلو سره اړیکه لري، نو ځکه د انسان ظاهر نه بلکې باطن اړین دی. زما د خبرو په اورېدلو د ملګري فکر وا وښت او نور یې د ظاهر پرځای باطن ته ارزښت ورکاوه.

## انساني ځان پېژندنه

سترګې مو لرې شیان لیدلای شي، خو خپلې نیمګړتیاوې نه!

د سترګو لرې دید مو سم او نږدې ناسم دی.

غیبت بنه عمل نه ګڼو، خو له سهاره تر ماښامه یې کوو.

د نورو عیبونه شمېرو، خو خپل عیبونه نه وینو.

هو! د نورو عیب د کلي منځ او خپل د ولو منځ وي.

نور خلک چې پردو ښځو ته ګوري ګناه ده، خو خپله یې له سره تر پښو معاینه کوو.

د نورو ښکلې قوارې بدې او خپله ویرونکې قواره راته ښکلې ښکاري.

د نورو ښکلي اولادونو نه، خپل بدرنګه راته ښه ښکاري.

یو عالم وایي: «که بتان مات کړې کوم ستر کار دې نه دی کړی. حقیقي شهامت دا دی چې په خپل ځان کې د بت پرستی خوی ورک کړې.»

هو! د نورو جوړولو لپاره د ځان جوړول مهم دي. د انسان پېژندلو لپاره د ځان پېژندل.

*حدیث شریف دی: من عرفه نفس فقد عرفه ربه: چا چې ځان وپېژنده، په حقیقت کې یې الله تعالی وپېژنده او د الله تعالی پېژندل د دواړو کونو کامیابي ده.*

## انساني فکر

هر انسان د ښه یا خراب فکر څښتن وي او ټولې خبرې یې د مثبت او منفي فکر زېږنده وي.

فکر د انسان د عمر اندازه ټاکي:

که یو انسان د ماشوم فکر څښتن وي او عمر یې ډېر وي، په حقیقت کې په ده کلونه تېر شوي دي، خو دی لا ماشوم دی.

که ماشوم د لوی پوه انسان فکر ولري، په حقیقت کې په ده د عمر کم کلونه تېر شوي دي، خو فکر یې دا تقاضا کوي چې دی لوی انسان دی.

په نړۍ کې انساني سرمایه په ګټُرو کې په کامیابو فکرونو حسابېږي نه په هر ډول سر.

فکر د انسان د شخصیت ښکارندوی دی:

له دې مخکې چې اروا‌پوهان د انسان د شخصیت خواوې تر بحث لاندې ونیسي، د دوی مشاهده او له دوی سره مرکه شخصیت پېژندنې کې مرسته کولای شي.

فکر د انسان انسانیت ټاکي.

فکر د انسان دید دی.

فکر د انسان قوت دی، خو همدا فکر یې کمزوري هم ده.

یو عالم وایي: «ستاسې فکر چې هر څه وي تاسو هماغه یاست. هېڅ امکان نه لري چې څوک له خپل فکره لوی شي یا د خپل [illegible] ده‌دو څخه تجاوز وکړي.»

د هر انسان فکر یې د دننني ذات نماینده ګي کوي. د انسان له فکر یې داخلي توکي تشخیصولای شو.د هر لیکونکي لیکنه د هغه د فکر ائینه ده. که غواړئ، چې د یوه لیکونکي حقیقي ارزښت معلوم کړئ، دې ته مه ګورئ چې ده، په کومې موضوع فکر کړی دی، یا د فکر محصول یې څه دی؟ د یوه لیکوال د مقام پېژندلو لپاره همدغه کافي دي چې پوه شو څه ډول فکر کوي او د فکر کولو طرز یې څه ډول دی؟ د هر لیکونکي لیکنه لکه خمیره ده، چې بېلا بېل شکلونه او صورتونه قبلوي، مګر دا صورتونه که هر څومره مختلف وي بیا هم خمیره یوه ده. د انسان ظاهري ساختمان په لیدلو یې ظاهر معلومولای شو. کله چې خبرې وکړي، عمل وکړي او یا څه ولیکي، نو د ده دنني تول کره وړه معلومولای شو. د انسان ژبه، سلوک و کردار، احساسات و اخلاق او داسې نور موضوعات یې له فکر سره اړیکې لري.

*سالم او ښه فکر د انسان حال او اینده تباکي، مثبت فکرونه د مثبتو سیګنالونو په شان د جاذبې قوه لري، که فکر وکړو چې د نړۍ هر ښه کار کولای شو، نو په خپلو ټولو کارونو کې به کامیاب اوسو، باید داسې فکرونه ولرو:*

*زه هر ښه کار کولای شم.*

*زه د ټولنې کامیاب انسان یم.*

*زما ټول تصمیمونه مثبتې پایلې لري.*

*زه خواکمن یم.*

*زه شکر ګزار یم.*

*زه پیاوړی یم.*

*زه په مخه ځم.*

*همدا اوس چې تا دا پورته خبرې ولوستې، نه په خپله همدا کس یې. په نورو کسانو کې یې مه لټوه، ستا په وجود کې شته، خو ته یې په اړه فکر وکړه.*

## انساني روژنه

ډېر وخت ظاهر بین انسانان په قضاوت کولو کې سهوه کېږي.

که لوستي وګړي ناسم کار کوي، نو دلته پوهه ملامته نه ده، بلکې هغه انسان ملامته دی چې ښوونه یې کسب کړې، خو د عمل جامه یې ورکړې نه ده.

د ښوونې عملي جنبه له روژنې سره اړیکه لري. علم هغه وخت ارزښت او قیمت پیدا کوي چې د عمل په ګاڼه سمبال شي، که د یو کس روژنه سمه نه وې او یا یې په علم کولو عمل نه وي، نو علم نه بلکې عالم ګرم دی.

هو! علم له خطا څخه خلاص دی، مګر علما تل په خطا کې دي.

علم انسان ته نه وایي چې غیر انساني او اسلامي کړنې وکړي، بلکې انسان دی چې په علم عمل نه کوي او غیر انساني کړنې سرته رسوي.

که په نوم مسلمان غیر اسلامي او انساني کړنې کوي، نو بیا هم اسلام نه بلکې په نوم مسلمان ملامته دی. نن که انسان سم کارونه نه کوي نو ټول انسانان ملامته نه دي.نه ټولې ښځې بدې دي او نه ټول نارینه ګان ګرم دي. ټولې ښېګنې او نیمګړتیاوې فردي دي نه ټولنیزې.

*ښوونه د انسانانو لپاره د انساني ژوند هغه وسیله ده، چې د هدف لاس ته راوړلو لپاره تري کار اخیستل کېږي او دغې هدف ته رسېدلو ته روزنیزه څواکمنتیا وایي.*

*ښوونه او رزونه یو د بل لپاره لازم او ملزوم دي، چې ښوونه زده کېږي او نظري وي، خو روزنه د ښوونې هغه عملي اغېز دي، چې په روزمره ژوند کې تري ګټه اخیستل کېږي.*

## انساني محیط

انساني کړه وړه د محیط سره نیغ په نیغه اړیکې لري او دی هغه هستي ده چې د بېلا بېلو ټولیزو لاملونو پر اساس مثبت او منفي خوی او عادت اخلي. که په ټولنې کې ستونزې ډېرې او هر ډول بې عدالتي وي او یو با وجدانه کس په چیغو چیغو د بې عدالیتو پر وړاندې مبارزه وکړي، د دې پر ځای چې دی د خوشحالۍ احساس وکړي او خپل کار کې کامیاب شي، دی به هر وخت خفه او کامیابېدل بې هم اسان کار نه دی.

که په ټولنې کې فساد عادي وي او ډېر خلک د فساد په تعریف پوه نه وي او د فساد مرداري پیسې ځان ته حلالې وګڼي او پرې افتخار وکړي، په داسې ټولنه کې له فساد سره مبارزه اسانه نه ده.

محیط پر انسانانو سربېره په ژویو، بوټو او جماداتو هم خپل تاثیرات لري. د شنو ځایونو او پټیو ملخان شنه وي او د وچو دښتو ملخان سپیره.

د شنو ځایونو او دښتو مرغان په رنګ او عادت کې سره توپیر لري، د کورنیو او غرنیو حیواناتو خوی او عادت هم سره توپیر لري، چې دغه ډول ډول توپیري اغېزې محیطي دي.

ښه انسانان د خراب محیط سره ځان جوړولای نه شي، دلیل یې دا دی چې محیط له ده یو ډول تقاضا لري او دی له محیطه بل ډول. دی په ټولنې کې عدالت غواړي، خو ډېر خلک د عدالت په تعریف نه پوهېږي. دی په ټولنې کې انساني ارزښتونو ته احترام غواړي، خو د داسې ټولنې انساني معیار ټاکنه د ټولنې د خلکو په فکرونو او نظرونو کې بل شان وي. دی د انسان دننني جوړښت باندې تاکید کوي او د ټولنې ډېر خلک کالبوتونو ته ارزښت ورکوي. دی په سپینو جامو کې ډېر تور زړي انسانان پېژني، خو د ټولنې ډېر خلک جامو، کورونو، موقفونو، نسب او ځینې نورو مسایلو ته ارزښت ورکوي. د ښه محیط سره ځان جوړونه ښه کار دی، خو د خراب محیط سره تطابق د انسان په زیان دی.

## انسان او نیشنلیزم

د «ولقد کرمنا بنی ادم» مفهوم دی چې قومي، نژادي، سمتي، مذهبي او جنسي توپیرونه د انسانیت معیار نه ټاکني ته ګټه او زیان رسولی نه شي، د شخصیت په لحاظ علم او د فوقیت په لحاظ تقوا مهمه ده.

که چېرې د ښو او بدو په پېژندلو پوه شو، نو بیا انسانیت ته احترام کوو او خپل او پردي د یو لاس ګوتې ګڼو.

که یو بې سواده وکیل ته د دې لپاره رایه ورکوو چې زموږ د کور و کلي دی او یا په بېلا بېلو لاملونو د قوم پالنې مفکوره عملي کوو دا سم کار نه دی.

دا مفکوره پرمختللي هېوادو کې کمه او وروسته پاتې هېوادونو کې زیاته ده، کله کله د ډېرو له خولې اورم چې وایي، زما لغماني، زما پنجشېری، زما بدخشي او یا زما کابلي. د «زما» کلمه چې کله د چا د خولې واورم، نو د نشنلیزم بوی یې له فکر او نظره راته ښکاري او په دې پوه شم چې اوس هم ډېر خلک په دې نه پوهېږي، چې د نړۍ د ټولو ښو کارونو لپاره معیار ټاکنه خدمت کول دي.

تر کومه به خپلو ته په نورو برتري ورکوو، ایا دا سمه ده چې خپل تېښو د بل له اس سره نه برابروو؟ خپل بدرنګه زوی راته د بل د ښایسته زویه ښه ښکاري؟ یو چا راته وویل: د لغمان ځینې ځوانان درنه د دې لپاره خفه دي چې دوی سره مرسته نه کوې، چې دا کار دې سم نه دی، ما ورته وویل: د خدمت او خیانت تعریفونه باید څرګند شي، په امتحان کې ناکام کامیابول خدمت نه، بلکې خیانت دی، خو په داسې مسایلو پوهېدل د زړه سترګې غواړي.

د یو ولایت وکیل د کانکور په امتحان کې له صحنې پارچې وباسي او بیرته یې محصلانو ته ورکوي، چې پارچې حل کړي، د ولایت ډېر خلک د وکیل له عمله خوشحاله وه او امتحان ورکوونکي ځوانان هم خوشحاله وه او وکیل هم دا فکر کاوه چې خدمت کوي، چې په حقیقت کې دا لوی خیانت دی.

د دې ټولو خبرو اساس د نشنلیزم سره اړیکه لري او هغه څوک چې داسې

خیانت سرته رسوي او یا چې د چا سره د کومک په نامه خیانت کوي، اساسي مساله یې نشنلستي مفکوره ده.
نړۍ یو لوی کور دی او اوسېدونکي یې د کور غړي دي. انسان هماغه دی چې د نورو درد په ځان کې حس کړي. د سعدي خبره «بنی ادم اعضای یک دیگرند ـ که در افرینش زیک گوهر اند» انسان ته ګټه رسول باید د انسانیت لپاره وي، که په نړۍ کې ابو علي سینا بلخي د شرق د نابغه په نامه پېژندل کېږي، نو موږ باید اډیسون د یو نابغه په نامه ومنو، ځکه چې د داسې نوابغو ګټه انسانیت ته ده، نن که د برېښنا له روښنايي ګټه اخلو، د اډیسون خدمت دی، نو بیا ولې خپل نابغه ته په هغه برتري ورکړو. بهتر انسان هماغه دی چې د عقبا په فکر کې وي، ځان او ټولنې ته خدمتونه وکړي.
د خپل او پردي توپیر دې د خدمت له مخې وي، نه د نشنلیزم له مخې، «که چاره د سرو شي، په ګېډه کې د منډلو نه ده»، که یو انسان دې د کور غړی وي، خو ځان او ټولنې ته یې خیر ښېګڼه ونه رسېږي او په مقابل کې پردی انسان د انسانیت په فکر کې د ژوند شپې ورځې تېروي او خدمتونه کوي، د داسې خپل نه په مراتبو هغه پردی بهتر دی چې ټولنې ته کار کوي.
چېرې چې نشنلستي مفکوره عامه وي، هلته عدالت نه وي او په ټولیز ډول ډېر خلک خفه وي.
زه د افغانستان اوسېدونکی یم. انسان یم. که د لغمان یم، خو د ننګرهار نه یم. د علیشنګ یم، خو د کامې نه یم. نارینه یم، خو ښکلې ښځه نه یم، نو دا خو زما ستونزه نه ده، ستونزه ستا په نشنلستي مفکوره کې ده. د همدې نشنلیستي مفکورې له امله ډېر با استعداده ځوانان د کمترۍ احساس کوي او کله کله زه هم داسې فکر کوم چې د دې ځای نه یم.
*خپل قوم، نژاد، سمت، ملک او قوم ته په بې مانا ډول برتري ورکول سم عمل نه دی، د انسانیت معیار پاکنه د علم او تقوا په لحاظ ده او بس!*

## انسان او ظلم

که انسان د حقیقت پر بنا او اصولو برابر ژوند تیرولو هیله ولري، نو حتمي به د نورو انسانانو خواخوږی وي، خو که نوم یې د انسان او کړه وړه یې انساني نه وي، نو دی به د ظالمانو پاچا وي. دی به چنګیز او هلاکو وي او انسانانو ته به د بد انسان سمبول وي.

په انسان ظلم انسان کوي، له دې سره چې حیوانات عقل او پوهه نه لري، خو بیا هم انسان ته د انسان په اندازه زیان نه رسوي، دا هغه د عقل او پوهې سمبول دی، چې ډېرو همجنسو او ناهمجنسو ته زیانونه رسوي. که لاسونه یې د انسانانو په وینو سره دي، نو په بې ژبې حیواناتو هم ظلم او تېری کوي، نباتاتو ته هم زیان رسوي.

د پوهنتون په ساحه کې ولاړ وم، د یوه سپي ډېره کرمي کېده او زمونږ نه لرې پروت وه. زما سره ولاړ کس تیږه واخېسته او سپی یې وویشت او سپي د درد اواز وکړ، زما ورته پام شو او ورته مې وویل: ولې دې سپی وویشت، هغه الله تعالی پیدا کړی دی، د ژوند کولو حق لري. انسانانو ته خو زیان رسوو، حیوانات هم رانه بنه ورځ نه لري.

ځینې ظالم انسانان حیوانات او پرندې د دې لپاره ساتي، چې نورو حیواناتو او پرندو ته پرې زیان ورسوي. خپل لاسونه یې په وینو سره دي، خو هغوی ته هم زمینه سازي کوي، چې ګنهکار شي او لاسونه یې په وینو سره شي.

ظلم په سلګونو ډولونه لري. د یو چا اولاد وژل که ظلم دی، بل ته حق نه ورکول هم ظلم دی. که په ټولنه کې عدالت او برابري نه وي دا هم ظلم دی.

## انسان او شخصیت وژنه

ځینې انسانان د نورو انسانانو شخصیت وژنه کوي. دا یو ډول رواني رنځ دی، چې د سادیزم په نوم یادېږي. سادیستان د خپل بدن داخلي جوړښت کې یو ډول ژنونه لري. د دې ژنونو درلودونکي د کمترۍ احساس کوي او د ژوند په هره برخه کې د ځان نه لوړ سړی لیدلای نشي، دوی د بل انسان په زَور خوشحالېږي، د نورو په درد کې خپله بې.دردي ګوري، د بل مال او دولت ته خفه کېږي، که د یو انسان د پوهې درجه له ده لوړه وي، په ده اور بلېږي او د انتقام اخیستلو روحیه ورسره پیدا کېږي.

شخصیت وژنه ارادي عمل دی، دا کړنه په قصدي ډول سرته رسوي، خو کله کله دا عمل د نورو خلکو لخوا پلانېږي او سرته رسېږي. په نړۍ کې دوه ډوله جګړې موجودې دي، یوه یې فزیکي جګړه ده چې په مخامخ ډول سرته رسېږي. اوسني وخت کې د دې جګړې پایلې ډېر وخت کامیابه نه وي او دویمه رواني جګړه ده، په دې مقابله او مجادله کې جګړه مار د خاصو تکتیکونو کار اخلي او په مستقیم او غیر مستقیم ډول د هدف شوي انسان مغز تر خپل کنترول لاندې راوړي او کوښش کوي، چې د ده په فکر فشارونه راوړي، چې خپلو اهدافو ته ورسېږي. رواني جګړه مشهور تکتیکونه لري، چې یو تکتیک یې د عادي انسانه لوی انسان جوړول دي او بل تکتیک یې د یو لوی انسان نوم له خاورو سره برابرول دي.

انساني ډېرې نیمګړتیاوې په انسانانو کې دي، چې د دې رواني تکلیف سبب له ارثي او محیطي لاملونو سره اړیکې لري. کله کله دا تکلیف ارثاً له کورنیو اولادونو ته پاتې کېږي، خو محیطي تاثیرات هم د دې سبب کېدای شي، چې د یو انسان شخصیت وژنه منځ ته راځي. شخصیت وژنه مثبته او منفي خوا لري. که چېرې عدالت نه وي او حق حقدار ته ور نه کړل شي، وزیران، ریسان او د پارلمان وکیلان په معیاري ډول ونه ټاکل شي او په ملک کې خوان فکرمند پوهان موجود وي، خو مالدار نه وي، د ریسانو بچیان نه وي، د کوم ګوند سره تړاو ونه لري او چاپلوسي ونه کړي، نو ډېر وخت دوی ته

حق نه ورکول کېږي، نو دوی مجبور شي، چې د خپل حق د لاس ته راوړلو لپاره په شخصیت وژنې پیل کوي، چې دې ته مثبته شخصیت وژنه ویلای شو، خو که یو کس په ناحقه دا عمل سرته رسوي، نو دی بیا منفي شخصیت وژنه کوي.

که په یوې ټولنې کې مثبته او یا منفي شخصیت وژنه وي بیا هم دا عمل د انسان په واسطه سرته رسېږي او ګرم بیا هم انسان دی.

که په ټولنې کې عدالت پلی شي، نو ولې به د خپل حق د موښتلو لپاره خپلې کسان دا عمل سرته رسوي. عدالت هم د انسان په واسطه نه پلی کېږي، دلته هم انسان ملامته دی، خو که چېرې په پې معنا ووړل د کوم کس شخصیت ته زیان رسوو، نو دا هم انساني ستونزه ده. هغه څوک چې په دې عمل روږدي وي، د نورو پرمختګ لیدلای نه شي، دا ناپوهه د بل پوهې نه خفه کېږي، که دا پوهه نه لري او د چا چې شخصیت ته زیان رسوي، پوه او عالم انسان وي، ستونزه خو په پوه کې نه ده، بلکې ناپوه ملامته دی چې پوهه نه لري. انسانان په بېلا بېلو دننېو او بهرنیو ساختمانونو پیدا شوي دي، په ټوله کې په یو شان داخلي او خارجي جوړښت انسانان پیدا کولای نه شو، یو په ښکلا لري، خو بل په قوت. د چا په قد لوړ وي او د چا ټیټ. څوک په لس اولادونه لري او بل به د اولاد تداوي پسې په ملکونو ګرځي. د چا د ذکاوت درجه به لوړه وي او د خینو به ټیټه، نو دا چې انساني توپیرونه په ټوله کې حتمي دي، نو بیا ولې هغه څه چې موږ یې نه لرو ارمان یې کوو او کله کله په غیر انسان عمل (شخصیت وژنه) روږدي کېږو.

که نه خپنې شیان نه لري او په مقابل کې یې بل لري، امکان لري چې خپنې شیان به نه لري، خو بل به یې نه لري.

بیت دی: "هر انسان ته د انسان په نظر ګوره - هر سړي ته د خپل ځان په نظر ګوره" که چېرې د الله تعالی په اومرو برابر ژوند تېرولو شپې ورځې تېرې کړو، نو هېڅکله د نورو شخصیت ته زیان نه رسوو.

# اقبال، انسان او خودي

خینو نړیوالو پوهانو په خپلو افکارو کې انساني پېغامونه درلودل. د دوی فکر محدود نه و او نه یې فکر او نظر د یوې خاصې ټولنې نمایندګي کوي. محدود فکر د محدودو خلکو له خوا ستایل کېږي، خکه چې د هغه نظر عامو خلکو ته نه وي، بلکې خاصو ته وي.

که د فارسی ژبې لیکوال پېغام یوازې او یوازې فارسیوانانو ته وي، په ویناوو کې یې ستاینه د فارسیوانانو وي او د ده فکر او نظر د فارسیوانانو د کلتور او ټولنې نماینده ګي وکړي، نو د ده فکر محدود شو او د ده څرګندونې د یو ملت استازیتوب کوي، خو که چېرې د یو پوهان د فکر حدود پراخ وي او د ده په ویناوو کې جهان بیني موجوده وي پېغام یې نړیوال وي، نو د ده شهرت به هم په نړیواله سطحه وي. د خینو لیکوالو نظریاتو کې نشنلیزم وینم، نو هماغه دی، چې د یوې خاصې جغرافیه خلک یې یادونه کوي، خو په نړیواله کچه یې څوک نه یادوي، خکه چې د ده پېغام نړیوال نه دی.

د لوی هندوستان لوی لیکوال علامه اقبال هغه فیلسوف شاعر دی، چې په ټولیز ډول د ده په ډېرو شعرونو کې او په خانګړي ډول په اسرار خودي او رموزې بې خودي اثارو کې د خودي «خان پېژندنې» په اړه نظریات د انساني لارښوونې په تړاو دي، د ده په خینو شعرونو کې نړیوال پېغامونه پراته دي، نو خکه نن په بین المللي کچه پېژندل شوی شخصیت دی.

د ده په ویناوو کې د خان پېژندنې په اړه ډېرې لارښوونې انسان او انسانیت په اړه دي، وایي:

خودی کو کر بلند اتنا که هر تقدیر سی پهلی
خدا بندی سی خود پوچهی بتا تیرا رضا کیا هی

د ده په شعرونو کې د خودي په اړه ډېر بحثونه په دې دلالت کوي، چې دی، د کایناتو او نورو انسانانو له پېژندلو مخکې خان پېژندنې ته متوجه وه او د خارجي لاملونو پر ځای خپل داخلي نظام ته یې پاملرنه کوله.

علامه اقبال وايي: د خودي اصل په لا اله الا الله ولاړ دی، کله چې د انسان په زړه کې د دې کلمې عظمت او لویوالی پیدا شي، نو ځان ته متوجه کېږي او د خودي په مفهوم پوهېږي، وايي:

خودي کی روح روان لا اله الا الله

خودي هی تیر کمان لا اله الا الله

خودي کا حسن بیان لا اله الا الله

خودي کا سرّ نهان لا اله الا الله

د شعر مفهوم دی: د ځان پېژندنې اړيکې له روح سره ده، کله چې روح جوړ شو، انسان جوړ شو، نو ځکه وايي، چې د خودي اصل روح دی، سپېڅلې کلمه ده او د سپیڅلې کلمې هغه کمان دی چې خپل اصلي هدف پرې ويشتلی شو، خودي د حقیقي حسن یادونه ده او په اسرارو پوهېدل دي.

اقبال وايي: د انسان د ټولو پرمختګونو او کامیابیو تربیت د خودي سره اړیکه لري، پياوړې او با تربیته خودي په واسطه انسان کولای شي چې د حق او باطل تر منځ توپیر وکړي، حق وپالي او له باطله ځان وژغوري.

د اقبال له نظره خود په حقیقت کې د انسان نوراني جوهر دی، چې د انسان ارزښت ټاکنه او معیار ټاکنه د همدې خودي په واسطه کیدای شي، د خودي نُور هغه نوراني رڼا ده، چې په انسان کې وي، خو پالل کېږي او تربیه کېږي. کله چې انساني خودي په چا کې پیدا شي، نو بیا د ده ټولې اعضاوې سم کارونه کوي، د ده فکر، خیال او درک که ښه وي، نو د ده د خودي نماینده ګي کوي. کله چې د انسان زړه جوړ شي، د زړه نه هدف د انسان روح دی، نو بیا په ټول بدن همدا روح سمه مشري کوي او که چېرې روح جوړ نه وي، نو بیا د بدن ټولې اعضاوې سم کارونه نه کوي.

که انسان خپل دننني رغښت ته پام وکړي او دې فکر کې شي چې د ده داخلي توکي ځنګه پیدا کړي دي؟ هره داخلي عضوه کوم کار کوي؟ نړۍ له دې دومره پرمختګ سره تر اوسه په دې توانېدلې نه ده چې د انسان د داخلي غړي په شان طبیعي غړی جوړ کړي، که لږ فکر وکړو، نو په خپل

## مولانا او انسان

نړیوال لیکوال مولانا هغه شاعر دی، چې د ده په شعرونو کې د نړۍ انسانانو ته لارښوونې شته. د ده په ویناوو کې نشلستي مفکوره نشته او د ویناوو پیغام یې نړیوالو ته وه، نو له همدې امله چې کله په ترکیې کې وفات شو، د بېلا بېلو مذهبو، رنګونو، جنسونو او قومونو خلک یې په مړي کې حاضر وو. د ده مثنوي معنوي په دوه زرم کال کې په نړۍ کې ډېر خرخ شوی کتاب وه، چې دلیل یې د فکر پراخوالی، لوی دید او لوړ خیالونه او ژور فکرونه وه. نن چې کومې انساني ستونزې شته، مخکې هم وې، نو ځکه د نړۍ ځینو پوهانو په دې اړه انسانانو ته د امر بالمعروف او نهی عن المنکر دنده سرته رسولې ده. مولانا انسانانو ته نصیحت کوي چې اصلاح له خانه پیل کړي، له دې مخکې چې د نورو عیبونو ته متوجې شو، د خپلو عیبونه معلومول راته مهم دي.

مولانا وایي: هر انسان اول ځل د والدینو او دویم ځل هم پیدا کېدل لري. اول ځل پیدا کېدل یې له والدینو جسمي دي او دویم ځل پیدا کېدل د تقوا او تفکر له امله دي. د هر انسان ارزښت د دویم ځل پیدا کېدلو نه پېل کېږي. دویم ځل پیدا کېدلو نه وروسته د انسان اختیار انسان سره وي او دا اختیار ورته د ښې لارې ښودنه کوي. دویم ځل پیدا کېدل په خود کې سفر کول دي، د دې سفر معادل په ټول جهان کې سفر کول دي، دا هغه سفر دی چې پای نه لري، ترکومه چې انسان د روح درلودونکی وي، دا سفر به ادامه لري، د انسان حقیقي ژوند هغه دی او یا انسان په حقیقي ډول تر هغې ژوندی وي، چې په همدې خودي سفر کې اوسي. حقیقي مرګ د ځان په نه پېژندلو کې دی یا په نه خودي کې دی. د دویم سفر لویوالی د نړۍ له ټولو هستیو څخه دی.

د خلقت په نړۍ کې انسان د سترګو او دیده د خالق ساخت دی او انسان اشرف المخلوقات دی او د خلقت نور شیان د پوستکي په څېر دي. انسان په نورو موجوداتو برتري لري.

## غزالي او انسان

امام غزالي متشرع عالم او ليکوال و. په ټوليز ډول د ده په ټولو اثارو او په خانګړي ډول «کيمياى سعادت، احياالعلوم الدين او مکاشف القلوب» يې هغه ديني لارښوونې دي، چې د انسانانو لپاره مهمې خبرې لري. د ده په اکثرو اثارو کې د قران کريم او احاديثو په رڼا کې انساني لارښوونې شته. دى انسانانو ته نصيحت کوي، چې اصلاح له خانه پيل کړي او د «خودى، خان پېژندنې» په مفهوم پوه شي.

امام صاحب په خان پېژندنه کې په باطن تاکيد کوي، دى وايي: د انسان ظاهر کالبد او ډانچه ده. انسان د ګنده او بوى ناکې خټې جوړ شوى دى. روح با ارزښته دى. ښه روح ښه مشري او بد روح بده مشري کوي. ظاهر په سترګو ښکاري او باطن نه ښکاري، بلکې باطني بينايي غواړي. زړه د باطني بينايي اصلي محور دى، يعنې زړه په واسطه د انسان باطن جوړيداى شي. بو د زړه ساختمان دى يا هغه جوړښت دى، چې په سترګو ښکاري او بل د زړه باطن دى. زړه د نړۍ ټول انسانان لري، خو د هر چا د زړه باطن جوړ نه دى او يا زړه خو حيوانات هم لري چې په سترګو ښکاري، خو د انسان له زړه سره يې توپير په باطن کې دى.

د انسان ټول ظاهري او باطني جوړښت د يو مملکت حيثيت لري، زړه يې پاچا دى او په ټول ملک مشري کوي. ښه او پياوړى پاچا پياوړې او ښه مشري کوي او بې کاره او ناکاره پاچا به په خپلو کارونو کې ناکام وي.

فکر، عقل او دماغ د همدې مملکت د لومړي وزير دنده په غاړه لري، د پاچا ټولې خبرې منې او بيا يې د ملک نورو لوړ پوړو چارواکو ته وړاندې کوي،

که پاچا سم هدایت وکړ، نو د وزیر لخوا هم سمه لارښوونه د لاس لاندې چارواکو ته کېږي. د ملک نور کار کوونکي د بدن اعضاوې دي لکه لاسونه، پښې، سترګې، غوږونه، پوزه او داسې نور. که په لاسونو د خير او يا د شر کارونه کوو، نو لارښوونه يې له زړه کېږي. که په پښو جومات پر خاى خرابو خايونو ته ځو، امر يې له زړه کېږي. که په سترګو ګناه کوو، په غوږونو غيبت اورو او داسې نورو کړنو لارښوونه له زړه کېږي. ښه زړه د ښه او پرمختللي ملک نمايندګي کوي او خراب زړه د خراب مملکت. عبثياتو زړه ته دام ايښى وي چې خپل په نيرنګ کې يې ونيسي. هغه زړه چې د کار نه وي ډير ژر په عبثياتو اخته کېږي او هغه چې په معرفت د الله نوراني وي، نو کله هم په داسې دامو کې نه نيول کېږي.

کله چې زړه غوارې اصلي او حقيقي ښکار وکړي، نو معرفت حاصلوي او بيا نو دا زړه د خان پيژندنې لپاره سمه لاره چاره ښيي.

د انسان ظاهري پنځه حواسه «اوريدل، ليدل، بوى کول، حس کول او خوند معلومول»او باطني حواس «تخيل، تفکر،حفظ،تذکر او توهم» د زړه د فرمان لاندې دي. که زړه پياوړى او ښه وه، نو دا ټول حواس سم کارونه کوي او که زړه ناسم وي، ناسم کارونه کوي.

د چا چې زړه جوړ شو، نو د خان پيژندلو په مفهوم پوهيږي او کولاى شي چې د بدن له ټولو غړو سمه ګټه واخلي، ننني ډيرې ستونزې په دې کې دي چې د خان پيژندنې له مفهومه خبر نه يو.

د نړۍ ټول انسانان دوه ګوني رغښتونه لري، دا چې له دې رغښتونو څه ډول ګټه اخلي، نو په دې کم کسان پوهيږي. لاسونه، پښې، سترګې، غوږونه، فکر، احساس، خيال، اخلاق او داسې نور داخلي او خارجي توکي ټول انسانان لري، خو په دوى کې څينې د خان پيژندنې په مفهوم پوه دي او له خپلو اعضاوو سمه ګټه اخلي.

## انسان او محیط

محیط چې انساني نه شي، د ښو انسانانو طمع لاسکنه ده. ښه محیط ښه انسانان او خراب محیط د خرابو انسانانو درلودونکي وي، خو محیط انسانان انساني کوي او د ژوند کولو لپاره یې مساعدوي.

که یوه ټولنه د پیاوړي سیاسي نظام درلودونکي وي. ملک په اقتصادي لحاظ خود کفا وي. د فرهنګي یرغله خلاص وي. انسانان یې د ښوونې او روزنې بر ګانه سمبال وي، نو دا ټول پرمختګونه د انسانانو په واسطه منځ ته راځي.

انسان هغه معلول دی، چې د بېلابېلو لاملونو پر اساس د ډول ډول خانګړنو درلودونکی کېږي. د انساني هستی ټولې اړیکې له ټولنې سره دي، که انسانان غواړي چې ټولنه یې ښه انسانان ولري، نو دوی مجبوره دي، چې ټولنې ته خدمت وکړي او بېلابېلو برخو کې د خدمت مصدر وګرځي، خو هغه انسانان چې د ټولنې د بهبود لپاره کار کوي، انساني افکار لري، دې ډول انسانانو ته انساني سرمایه ویلای شو. کوم انسانان چې پرمختللې ټولنې لري، انساني سرمایه یې ډېره ده، نو ځکه ښه محیط لري، یعنې انساني سرمایه له ښه محیط سره اړیکې لري.

د ښو ټولنو انساني سرمایه په نشت حساب ده، نو ځکه ډېر انسانانې نیمګړتیاوې لري او د خراب محیط لامل یې خراب انسانان دي. د اقلیت او اکثریت تعریفونه نوي شوي دي، نور نو ګڼې نه شمېرل کېږي، په ګڼو کې مغز شمېرل کېږي!! نو ځکه هغه محیط د ژوند کولو لپاره جوړ وي، چې انساني سرمایه یې ډېره وي، نن که ځینې ملکونه د ژوند کولو لپاره خورا ښه محیطونه لري، دلیل یې انساني سرمایه ده او هغه ملکونه چې د ژوند کولو

لپاره ښه محیط نه لري، لوی دلیل یې ناپوهه انسانان دي، نو ځکه یې محیط انساني نه دی.

د نړۍ انسانان ټاکلی فزیکي وزن لري. د پرمختللو او وروسته پاتې هېوادونو د انسانانو په ساختماني بهرنۍ جوړښت کې چندان توپیر نه شته او نه یې د مغز د وزن په ډېروالي او کم والي کې ډېر فرق لیدل کېږي، خو دا چې هنوی خپل فکر روزلی او پوهه یې تر لاسه کړې ده، نو ځکه انساني سرمایه یې ډېره ده او هغه ټولنې چې وروسته پاتې دي، د پوهې کچه یې ټیټه او انساني ستونزې یې په انسانانو کې زښتې ډېرې دي.

ای انسانه! خان ته پاملرنه وکړه او د ځینو ښو انسانانو سره په ښو انساني اعمالو کې رقابت وکړه. خان دې جوړ کړه او اصلاح دې له خانه پیل کړه، چې ټولنې کې ستا په شان خلک ډېر شي او ټولنه پرمختګ وکړي، نن که خرابه ټولنه لرو، اوبه لرو خو برق نه لرو، دشتې لرو خو غنم د نورو ملکونو راوړو، په غرونو کې قیمتي کاني لرو، خو د ویستلو په چل یې نه پوهېږو، دلیل یې ناپوهي ده. نن که محیط سیاسي نه دی، په سیاست کې د لوړو وظایفو لپاره معیار ټاکنه له ټولې نړۍ توپیر لري، بیا هم ملامته انسانان دي. د پارلمان وکیل ته ولس رایه ورکړې ده. وزیر د پارلمان د وکیلانو په واسطه غوره شوی، ریس جمهور د انسانانو د انتخاب پایله ده، نو که د ټولنې انسانان سم شول، سیاسي نظام او محیط به سم شي.

*یوه ډله اروپوهان په دې اند دي، چې د انسان شخصیت جوړېدنه له ارثي خانګړنو سره اړیکه لري، بله ډله د محیط طرفدار دي او دریمه ډله ارثي او محیطي اغېزې مهمې ګڼي، نو د انسان اړیکې له محیط سره نېغ په نېغه رابطه لري، ښه محیط د ښو انسانانو درلودونکی وي او ښه انسانان د ښه محیط جوړونکي وي.*

## انساني پوهه

د علم سره عمل ضروري دی او عمل د عالم شخصیت لوړو مرتبو ته رسوي.

هر پوه انسان ته باسواده او لوستی ویلای شو، خو هر لوستي وګړي ته پوه انسان ویلای نشو.خیني خلک پوهه په مکتبونو، پوهنتونونو او علمي ځایونو کې لټوي، داسې ځایونو کې علم کسب کېږي او ډېر کم کسان پکې د پوهې درجه تر لاسه کولای شي.کله کله پوهه د انسان د علمیت او تحصیل سره هیڅ اړیکه نه لري. لوی عالم به وي، لوستی به وي، خو پوه به نه وي. لوی ډاکټر به وي، خو پوه به نه وي.

په خینو ځایونو کې د باسوادو «لوستو» وګړو او پوهانو توازن برابر وي، یعنې اکثره باسواد د پوهې خښتنان وي، خو په خینو ځایونو کې د لوستو وګړو او پوهانو تر منځ برابري نه وي. ډېر لوستي وګړي د پوهې په درشل پښې ایښې نه دي. د لوستو وګړو پېژندل اسان دی، خو د پوهانو معلومول دومره ستونزمن کار دی لکه د انسان پېژندل.

په خینو لوړو څوکیو لوستي وګړي ناپوهان دي او فکر کوم چې پوهه ځکه بنه ده چې ډېره کمه ده او په ډېرو کمو کسانو کې پیدا کېږي.

موقف، نسب، جنسیت، نژاد، مذهب او قوم له پوهې سره اړیکه نه لري.

د لوړ موقف خاوند به ناپوهه وي، خو دهقان به پوه وي.

اخندزاده به حرام خور وي، خو جولا به حرام خور نه وي.

ښځه به عالمه وي او نر به د علم نه بې برخې وي.

تور پوستی به ښه مسلمان وي، خو سپین پوستی به ګنهګار وي.

موږ لوستي وګړي ډېر لرو، خو پوهان کم او د لوستو وګړو او پوهانو تر منځ توازن کم دی.

## انساني ازادي

که یو انسان په لاسونو بد کارونه وکړي. له پښو سمه استفاده ونه کړي، په ژبې درواغ، غیبت، بد او رد ووایې، په غوږونو ګناهګارې خبرې واوري، په سترګو ګناهونه وکړي او فکر یې د کار نه وي «یعنې له بیروني او دروني انساني ښکلا وو» سمه استفاده ونه کړي نو د ازادۍ مفهوم به څه وي؟

ازادي د فکر په کار ده.که یو انسان بې فکره او ناپوه وي، د ده ازادي دا معنا لري، لکه پرنده چې د قفس له اسارته خلاص شي، یا یو زمری له قفسه خوشې شي او په ځنګل کې خپلو ظلمونو ته ادامه ورکړي، دواړو په خپل ذات کې ازادي ترلاسه کړه، خو د دوی ازادي د انساني له ازادۍ توپیر لري.

له انسانانو سربېره که حیوان وتړل شي، کوښښ کوي چې ځان خلاص کړي، پرندې پـه قفـس کـې د خلاصـون لپـاره شـور ماشـور جـوړوي او د ازادۍ غوښتونکي وي، خو د انسان ازادي باید یوازې د خلاصون په معنا نه وي.

که ړوند ته سترګې واچول شي،ګوډ ته ساختګي پښې، په دواړو لاسونو معزور ته لاسونه ورکړل شي، خو د خیر پر ځای د شر کارونه پرې وکړي، نو د دوی د ښه کېدو نه یې په خپل حال پاتې کېدل ښه دي. کـه د ازادۍ پـه مفهـوم څوک نه پوهېږي په اسارت کې ورته ژوند بهتره دی.

د انسان لپاره د فکر ازادي مهمه ده، چې فکر ازاد شو، د بدن نورې اعضاوې هم د ازادۍ په مفهوم پوهیږي او ټول بدن د ازادۍ په ګټه کار کوي.

د انسان فکر دی چې ازادي پېژني او نورو اعضاوو ته هم د سـالمې ازادۍ د پیژندنې لارښوونه کوي.

د فکر ازادي په پوهې ساتل کېږي، خینـو ملکونـو چـې ازادي واخېسـته پـه ساتلو کې یې هم کامیـاب وو، دوی پوهېـدل چـې ازادي پـه پـوهې سـاتل کېږي، خو ځینې ملکونو ازادي واخېسته، خو په ساتلو کې یې پاتې راغله او لوی دلیل یې ناپوهي او بې علمي ده.

ازادي په زور اخېستل کېږي او په فکر او پوهې ساتل کېږي.

## انساني تناسب

د انسان هر څه په توازن پیدا شوي دي، نو څکه حکیم ذات فرمایي: «فی احسن تقویم»، انسانان په اعتدال پیدا شوي دي. د انسان ټول ظاهري عضوي «لاسونه، پښې، سترګې، غوږونه، پزه، سر او ګېډه» باید یو د بله برابروالی ولري. که د یو چا سر د مشرانو «ډېر» عمر او لاسونه او پښې یې د ماشومانو «کوچني» عمر وي او یا د یو ماشوم ږیره پر مخ وي او نور بدن یې د ماشومانو وي، ښه نه ښکاري او ټولو خلکو ته داسې مسایل معجزې ښکاري.

د بدن د ټولو لیدونکیو جوړښتونو تر منځ برابري په کار ده. که د یو انسان پوزه له حده غټه وي، ښه نه ښکاري او که ډېره کوچنۍ وي بیا هم بدې ښکاري. د ډېر غټې پوزې درلودونکي ته هم د حیرانتیا په نظر کتل کېږي او ډېرې کوچنۍ پوزې درلودونکي ته هم خلک په تعجب پاتې وي او کله کله د نړۍ په کتابونو کې د دوی یادونه کېږي. د انسان له ظاهري جوړښت پرته باطني جوړښت هم باید سره برابروالی او تناسب ولري.که د یو انسان عمر د څلویښتو کلونو وي او فکر، عقل او پوهه یې د ماشوم وي، په حقیقت کې دی د عمر په لحاظ مشر او د پوهې په لحاظ کوچنی ماشوم دی.

د نړۍ په ډېرو کارونو کې توازن مهم دی. که د یو ادارې مشر ناپوه وي او تر لاس لاندې کسانو کې عالمان موجود وي، هېڅکله به د لاس لاندې کسان د خوشحالۍ احساس ونه کړي، څکه چې حق یې خوړل شوی دی او کله هم داسې ملکونه پرمختګ نشي کولای.که لوړ پوړي چاروکي ناپوهان وي او په اکثرو عوامو کې له دوی پوهان موجود وي، بیا هم ملک نشي جوړېدای، څکه چې د پوه او ناپوه تر منځ تناسب موجود نه دی. په کومو ټولنو کې چې ډېر ناپوهان مشران وي او د دوی انتخاب د عوامو په لاس کې وي. دلته له ظالمه مظلوم ډېر ملامت دی، له ظالم مالدار غریب بېچاره ډېر ګرم دی. ناپوه به ناپوه ته رایه ورکوي، دلته د توازن او تناسب ساتل د انسان کار دی. لکه څرنګه چې د انسانانو په ظاهري او باطني رغښت کې تناسب په کار دی، دغه شان د نړۍ په نورو کارونو کې هم برابري په کار ده.

## انساني مشري

ډېر خلک د فکر، ذهن او پوهې په لحاظ کوچني وي او د عمر ډېر دورانونه پرې تېر شوي وي. د دوی فکري کمزورتیا ده چې د مشرانو په انتخاب کې له ستونزو سره مخامخ دي. باید د پوهې او علم مشرانو ته مشران وویل شي، خو برعکس ځینو خایونو کې د مشرۍ لپاره معیار ټاکنه او معیار پالنه توپیر لري. پخوا چې اکثرو خلکو پوهه او علم نه درلود مشران به یې هغه کسان وو، چې په فزیکي لحاظ به پیاوړي وو او په جنګ و جګړه کې به یې د ډېرو خلکو له سرونو خلي جوړولای شول او په ظلم کولو کې به د ټولو سر وه. که چېرې مشري په فزیکي قوت او د ظلم پر بنا ورکول شي، نو بیا خو د ځنګل بهترین قانون دی چې مشري هر وخت د ظالم سره ده، زمری که هر څومره د بیچاروو حیواناتو وینه تویوي، خو مشري بیا هم د زمري سره ده، ځکه چې هلته پوهه ارزښت نه لري او هر څه د ځنګل په قانون ورکول کېږي.

که مشري په عمر وي، نو بیا خو سل کلنه چینجي وهلې بې کاره ونه چې له لرګیو یې هم استفاده نه کېږي، له هغې بارداره او مېوه دارې ونې بهتر ده چې وړه، کوچنۍ او عمر یې کم دی.

د انسانانو لپاره د عمر له مترتوبه د علم مترتوب بهتره دی. په نباتاتو کې هم د عمر په لحاظ یوه ونه که هر څومره مشره وي، خو په مقابل کې یوه کوچنۍ بارداره ونه چې له مېوو یې استفاده کېږي بهتره ده.

*د عمر، څوکۍ، نسب، قوم او نژادي مترتوبه د علم، پوهې او فکر مترتوب غوره دی، په نړۍ کې د اصلي مشرۍ معیار ټاکنه له پوهې سره اړیکه لري.*

## ويښ انسان

د روښانه راتلونکي لپاره ويښتيا مهمه ده. فکرمند انسان چې څومره ډېر وخت ويښ وي، په همغه اندازه ډېر پرمختګ کوي. تاسې به د هغو دوستانو کيسه اورېدلې وي، چې خوب وړي تاوان کړی ؤ او نور ګټې يې به نصيب شوې وې. خوب وړي انسانان په تاوان کې وي او ويښ انسان په ګټې کې. له خوبه ويښ هغه چا ته نشو ويلای چې خبرې کوي. په خوب کې هم ځېنې په دراندو خوب وړي انسانان ګله ګله خبرې کوي او غوړېږي، خو ويښ سره يې توپير بولازي به خبرو کولو کې نه دی. ويښتيا د ګرځېدلو په معنا هم نه ده، ځېنې خوب وړي انسانان په خوب کې هم ګرځي را ګرځي، خو د دوی ګرځېدل بيا هم له اصلي ژوندیو انسانانو سره توپير لري. له خوبه پاڅېدل د سترګو خلاصولو په معنا هم نه دي. د ځېنو انسانانو په خوب کې هم سترګې خلاصې وي او زړې زړې به ګوري، خو په اصل کې به هغه ويده وي. ويښتيا د ساه اخيستلو او روح درلودلو په معنا هم نه ده، ډېر ژوندي شيان دي چې ساه لري، خو له خوب وړو سره يو شان دي. ځېنې انسانان روح لري، سترګې يې خلاصې او ګرځي را ګرځي به، خو له ويده انسانانو سره به توپير نه لري. ډېر روح لرونکي شيان دي چې ويده به نه وي، خو د دوی ويښتيا د ګټې پرځای تاوانونه لري. په ځنګل کې ويده زمری ښه وي، چې ويښ شي، په ظلم کولو بېل کوي. د دې ظالم له ويښتابه دايمي خوب بهتر دی. په همدې شان ځېنو انسانو د ظلم دسترخوان اوار کړی وي او دايم انسانانو ته زيان رسوي، د داسې انسانانو لپاره هم دايمي خوب بهتر دی، چې د ميزان په تله کې يې د بديو تله سپکه شي او خلک يې هم له شره خلاص شي. له هغه خوبه پاڅېدل مهم دي چې د فکر او ذهن ويښوالی پکې وي، د احساساتو خلا ولري، د عواطفو صدق ولري او د عقل او پوهې ښکلا ولري. د نړۍ د اکثرو خلکو فکرونه ويښ دي، نو ځکه فکري او جسمي کارونه يې د کار دي، د ځېنو خلکو فکرونه او ذهنونه ويده وي، په زاړه خوب ويده او په زړې زانګو کې زاړه خوبونه ويني، نو له همدې امله له فکر او جسمه ښه استفاده نشي کولای. چې فکر ويښ شي، جسم ښه کارونه کوي.

## د انسان عزت

نېکبخته انسانان په ښو انسانانو، ښې ټولنې او ښه وخت کې پیدا کېږي او کم طالع انسانان په خرابو انسانانو، خرابې ټولنې او خراب وخت کې به ژوند کوي. انسانان، ټولنه او زمان هغه درې اړخیز توکي دي، چې یو د بل سره اړیکې لري. ښه انسانان ټولنه انساني کوي او ټولنه چې انساني شوه، د محدودې جغرافیې اینده انسانان به په انساني ډول سم انسانان وي. وخت او زمان د نړی په ټولو شیانو تېرېږي، کله چې د ټولنې انسانان، انسانان شي او ټولنه جوړه شي، نو حسابي ټولنه او انسانان ډېرېږي. وخت په تېرېدو دی او دغه زماني دورانونه تغیر نه شي راوړی، بلکې انسانان دي چې له زمانه ګټه اخلي او مکان و حالاتو ته تغیر ورکوي. زمان له انسان پرته په نباتاتو او حیواناتو هم تېرېږي، که په ونې وخت تېر شي سل کلنه به شي، زړه به شي. که په حیوان وخت تېر شي، خواني به له لاسه ورکړي او داسې حال به راشي چې په غوښې کې به یې هم مزه پاتې نشي، خو په انسان وخت تېرېدل باید د نړی له ټولو شیانو توپیر ولري او همدا انسان کولای شي، د خپلو تېرو کلونو حساب وکړي. وخت پښې نه لري چې حرکت وکړي او پرمختګ منځ ته راوړي، انسانان دي چې حرکت کوي، زمان ته تغیر ورکوي. د زمان په حرکت راوړلو کې مکان هم تغیر کوي. که په مکان کې تغیر راخي، د زمان برکت دی. د فکر و پوهې پر ګانه سمبالو انسانانو کې د پوهانو عزت ډېر وي، خو د وروسته پاتې هېوادونو معیارونه بل شان وي. که علامه اقبال په وروسته پاتې ټولنه کې پیدا شوی وی او یا تولستوی د روسیې او ویکتور هوګو د فرانسې پر ځای په داسې ټولنه کې پیدا شوی وای، چې انسانان یې بې علمه او ټولنه یې وروسته پاتې وي، نو نن به یې دا شهرت نه درلود. که ګل پاچا الفت پرمختللې ټولنې کې پیدا شوی وای، نو نن به یې ډېر شهرت درلود. ښه وخت، پرمختللې ټولنه او د علم پر ګانه سمبال انسانان د ښو او پوهو انسانانو په معیار تاکنه کې نه سهو کېږي.



## د لیکوال پېژندنه

پوهنیار سید اصغر هاشمي د الحاج پوهنمل سیدرحمن هاشمي زوی، پر ۱۳۵۹ل کال د لغمان ولایت، علیشنگ ولسوالی، د کاسیګړ په کلي کې زېږېدلی دی.

## زده کړې

لومړنی، منځنی او ثانوي، شهید محمدعارف عالي لیسه، ۱۳۷۸ فارغ. لیسانس د ننګرهار پوهنتون، ښوونې او روزنې پوهنځی، د پښتو ژبې او ادب څانګه، ۱۳۸۸ فارغ. د کابل پوهنتون د پښتو ژبې او ادب د څانګې د ماسټرۍ څانګې، ۱۳۹۳ فارغ.

## بوختیاوې

په سید جمال الدین افغان پوهنتون (کونړ) کې د پښتو ژبې او ادب څانګې استاد.

## لیکلي اثار

### څېړنې

- د نظم تاریخ(لومړی او دویمه دوره)
- د استاد ګل پاچا الفت د شعرونو منځپانګیزه او جولیزه څېړنه(د ماسټرۍ تیزس).
- ادبي وړانګې.
- د الفت مرغلرې( سریزه، زیاتونه او ویپانګه).
- شعر پوهنه.
- د څېړنې بنسټونه.

- بولله له پیله تر خوشحاله.
- ادب پوهنې آرونه.
- غني خان فلسفي شاعر.
- ادبي مرغلرې.
- ادبي درو ټاکنه.
- د پښتو ژبې ادبي سرلارې.
- د لیک او لوست اسانه زده کړه.
- ادبي مرغلرې(دویم ټوک).
- د استاد الفت په شعرونو کې د ویښو زلمیانو اهداف.
- د مونوګراف لیکلو لارښود.
- د مونوګراف او سیمینار لارښود.
- قرآن کریم طبي اعجاز.
- د مقالې لیکنې بنسټونه.
- د متن څېړنې بنسټونه.
- د تحقیق اصول.
- د تیزس لیکنې لارښود.
- د شعر تیورې.
- رنګونه متالونه.
- د پښتو ژبې ادبي سرلارې.

## تخلیقات

- برخلیک(ناول)
- د فکر بیان (لنډې نثرې ویناوې).
- د فکر پلوشې.
- ادبي یون.
- غوره فکرونه.
- د هستی رازونه.

ـ انسان څوک دی؟

## ژباړې

ـ د بهلول نصیحتونه.

ـ د حضرت محمد(ص) لنډ ژوند لیک.

ـ د حضرت ابوبکر صدیق (رض) لنډ ژوند لیک.

ـ د حضرت عمر(رض) لنډ ژوند لیک.

ـ د حضرت عثمان(رض) لنډ ژوند لیک.

ـ د حضرت علي(رض) لنډ ژوند لیک.

## ټولونې

ـ د ادبي ژانرونو لنډه پېژندنه.

ـ د ادبي اصطلاحاتو سیندګی.

ـ د استاد ګل پاچا الفت ستاینې(راټولونه اوسریزه).

ـ د استاد الفت د شعرونو منتخبات(سریزه، اوډنه او راټولونه).

ـ ادبي ترمینالوژي.

## تدوین

ـ سیندونه او اندونه( سریزه او تدوین).

ـ د پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار د اتیایم زېږ پسرلي د یاد غونډې د لیکنو، ویناوو او پیغامونو ټولګه.

ـ د ګل پاچا الفت ادبي مرغلرې.

## مقالې

د ۷۰۰ په شاو خوا کې ادبي، سیاسي، ټولنیزې او اروابوهنیزې مقالې د پښتو په بیلا بیلو ویبپاڼو کې خپرې شوي دي.

## د هاشمي د اثارو چاپ شوې ژباړې

ـ غوره فکرونه اثر د افکار ناب په نامه فارسي ژبې ته ژباړل شوې دي.

ـ غوره فکرونه د (brilliant thoughts) په نامه په انګلیسي ژباړل شوی دی.

- د تحقیق اصول د ابعاد تحقیق په نامه په فارسي ژباړل شوی دی.
- د قران کریم طبي اعجاز هم په فارسي ژباړل شوی دی.
- د تیزس لیکنې لارښود د رهنمای تیزس نویسی په نامه چاپ شوی دی.

## چاپ ته تیار اثار

د پښتو ژبې ادبي سرلاري( دویم او دریم) ټوک، نړیوالې ادبي خبرې، ادبي نظم ډولونه او پیدایښت یې، د لرغونې دورې نثري اثار او پیدایښت یې، د لودیانو او سوریانو لیکوال، شاعران او مشاهیر، د پښتو ژبې تاریخ، ادب تیوري، ادبپوهنې پښتونه او نور.

## د کتاب له متن څخه:

د اور تېر تداوي کېږي، خو ځينې انساني دننني تېرونه جوړښت نه لري، که اور انسان ته زيان رسوي په حقيقت کې عقل او پوهه نه لري او دا کار يې غير ارادي عمل دی، يعنې د اور په زيان رسولو کې اختيار له اور سره نه دی، خو انساني تېرونه هغه دردونه او کړاوونه دي، چې په ارادي ډول د اشرف المخلوقات «انسانانو» پواسطه سرته رسېږي او د ده واک پکې حتمي دی.

د جبر و اختيار په فلسفه کې اختيار انسان ته ورکړل شوی، چې له نورو انسانانو سره ښېګڼې کوي او که ستونزې ورته پيدا کوي، خو له دې اختياره ډېر انسانان بده ګټه اخلي.

هاشمي خپرندويه ټولنه
Hashimi Book Publisher
چاپ چارې
هاشمي خپرندويه ټولنه- جلال اباد
اړيکشمېرې: ۰۷۸۰۰۰۶۱۶۶ - ۰۷۷۷۶۱۸۰۱۷